د کتاب نوم ——— رومانویت او عبدالحمید بابا

لیکونکی ——— خواجه محمد سائل

شمېره ——— پینځه (۵۰۰) سوه

د چاپ کال او ځل ——— سپتمبر ۱۹۹۴ ء

قیمت ——— پنځوس (۵۰) روپۍ

د کتاب نوم ـــــــــ رومانو بیت او عبدالحمید بابا

لیکونکے ـــــــــ خواجه محمد سائل

شمیره ـــــــــ پینځه (۵۰۰) سوه

د چاپ کال اول ځل ـــــــــ ستمبر ۱۹۹۴ ء

قیمت ـــــــــ پنځوس (۵۰) روپئ

# انتساب

## دَ محمّد اعظم خان په نوم

چې دَ پښتو دَ سرلوړۍ او ترقۍ کوششونه او خدمات يې دَ سيکرټري تعليم، ايجوکيشنل چيف سيکرټري او چيف سيکرټري په حيث دَ يادونې او ستائينې وړ دی۔

دَ پښتو ډکشنري پراجيکټ، پرائمري ټيکسټ بک پښتو ټرانسليشن پراجيکټ، پښتو ادبي بورډ قيام، دَ خوشحال خان خټک او عبدالرحمان بابا کمپليکس تعميرات او دَ پښتو شاعرانو، اديبانو مالي امداد دَ موصوف اهم کارنامې دی۔

دَ خوشحال روح ترې خوشال شو لو په گور کښې
دَ پښتو سرسنه وکړه اعظمؔ ورو، ورو

# فهرست

# دَ پروفیسر خواجه مُحَمّد سائل

# شخصیت او فکر و فن

پروفیسر خواجه محمّد سائلؔ دَ بهادرکلی (چې "د پیسه بهادر" ورته هم وائی او دَ پېښور ښار نه سوئېل طرفته په کوهاټ روډ تقریبًا په پنځه کلومیتره فاصله کښې پروت دے) دَ ابراهیم خېلو دَ خانانو کندی کښې دوست محمّد خان کره په ۲، جون ۱۹۳۸ء کښې زېږېدلے دے. دوست محمّد هم په دغه کال یو میاشت پس چې څنګه دَ هندوستان دَ مشهور ولی الله حضرت خواجه معین الدین چشتی رحؒ

دَ زيارت كولو نه پس خپل كلي ته راورسېدو، نوخدائې اپاك ورته نه وېښتي وركړے وو. نو په دې مناسبت سره يې په دهٔ خواجه محمّد خان نوم كېښو دو. هركله چې دَ ،، خواجه ،، لغوى معنىٰ امير ( مالدار ، دولتمند ) دهٔ نو خواجه محمّد خپل تخلّص دَ دې متضاد يعنى ،، سائل ،، ( محتاجه ، حاجتمند ) خوښ كړو ٠ او س په ادبى دُنيا كښې دے دَ خواجه محمّد سائل په نوم مشهور دے. خواجه محمّد سائل دَ مور پلار ايكې يو زوئې دے.

دَ سائل صيب ادبى سفر ډېر اوږد دے. دهٔ په ادبى دُنيا كښې خپل ځان په رومبى ځل په كال ١٩٥٨ء-١٩٥٩ء كښې متعارف كړو. دَ دهٔ يو نظم نما غزل ،، يو بېوفا معشوق ته ،، دَ اېډورډ كالج پېښور رجې دَ هغې دغه ورځو كښې طالب علم وو. دَ ذكر شوى كال دَ ،، تجلّي ،، نومې مېګزين په پښتو برخه كښې په رومبى ځل چاپ شوے دے. هم دَ دې نه دَ دهٔ دَ ادبى سفر باقاعده آغاز شوے دے.

كله چې پېښور يونيورسټۍ په رومبى ځل دَ مولانا عبدالقادر په هڅو ځو كال ١٩٦١ء كښې دَ ايم. اے پښتو كلاسونه پښتو اكېډمۍ كښې شروع كړل نو دے تر دوؤ كالو زما كلاس فېلو وو. دغه وخت موصوف دَ خواجه محمّد سائل په نوم ښهٔ مشهور وو. دغسې دے كال ١٩٦٣ء كښې ايم. اے پښتو نه فارغ التحصيل شو.

كال ١٩٦٢ء كښې يو سف خان اوركزئ چې دَ پښتو ژبې يو نامور شاعر او اديب وو دَ پښتونخوا دَ پاكستان رائټرز كلډ دَ پښتو خانګې صوبائى

سکتر نا کلے شوے وو. داد یوسف خان او رکوزئی پښتو ته بې او ادب سره
بې کچه مینه وه چې د غور ځو کښې د رائټرز ګلډ تنقیدي اجلاسونه به په
ډیره باقاعده ګۍ سره بالاماخه پېښور کښې د عبدالطیف خان په حجره او کله کله په
باغیچه کښې کیدل. دغه موده کښې د ذکر شوي تنظیم (ګلډ) ادبي سرګرمۍ
بنه په ډزانه کښې وې. په دې وجه دې کښې به د پښتو ژبې د مختلفو سیمو
شاعرانو او لیکوالو په ډیره مینه او شوق ګډون کولو. راقم الحروف
او موصوف هم د دغه تنظیم مستقل غړي وو. راقم الحروف د دغه تنظیم
په مختلفو نشستونو کښې د خواجه محمد سائل د غزلو یوه لویه برخه
اوریدلي ده. دغه وخت سائل صیب ته د رائټرز ګلډ د مختلفو تنقیدي
اجلاسونو د روئیداد او تو قلمبند کولو ذمه واري هم سپارلې شوې
وه. عبدالطیف وهمي د پانګې حوم ۲۰ اګست ۱۹۶۳ء "د سائل تغزل" تحت
لیکي. " خواجه محمد سائل د عمر او شاعرۍ په تولکه یې

کچ کړو. او بیا یې دا غزلونه وګورو نو خود به
به په دې وېنا مجبور شو، چې د انسان ارتقاء د هغه
د فن سره د مینې کولو محتاجه ده. د خلېر پښتو
پینځو پښتو کالو دا نارخښزه ذهن څو مره په ډګر
څخه په وړاندې روان دے. ماتر بنه پتوس وکړ د
شاعرۍ دې کاله نه شروع کړې ده. وېل یې.
دوه کاله به کېږي. دوه کاله کښې د فن دا ترقي؟

دې ناره کښې مې ووېل. خواجه محمّد سائل
چې پوخ عمر ته رسي. نو ضرور به غزل کښې
اوچت مقام حاصل کړي که غلط وايم. نو دا
درې غزلې يې ولولئ.» (لطيف وهمي)

دلته داوېل به بې ځايه نه وي چې خواجه محمّد سائل د پښتو د جديد ادب په تاريخ کښې د ټولو نه رومبے «سائل» دے. د سائل صېب نه پس که هر څو ډېر «سائل» تخلص لرونکي شاعران او اديبان موجود او مشهور دي (خدائے دې نور هم ډېر کړي) خو په دې لړ کښې موصوف ته د اوليت اعزاز حاصل دے.

دا ډېره د فخر خبره ده چې خواجه محمّد سائل د پښتو ژبې د مشهور صوفي شاعر رحمٰن بابا کورنۍ سره ډېر نزدې تعلق لري او د رحمٰن بابا په نسبو کښې ياديږي. تر کومې چې زما د معلوماتو تعلق دے. د عبدالرّحمٰن بابا نه پس په دغه کورنۍ کښې خواجه محمّد سائل رومبے شاعر او ليکوال دے دا ډېره د خوشحالئ او ويار خبره ده او د پښتو ادب خوش قسمتي ده چې د خوشحال بابا په کورنۍ کښې څو د ذامن، نمسي او کړوسي د پښتو ژبې اوچت او مشهور شاعران او ليکوال وګرزېدل او د خوشحال بابا دا پېشن ګوئي رښتيا ثابت شوه:

د خوشحال سره که کښيني يو څو کاله
دا د غره خټک به واړه شاعران شي

خو د خوشحال خان خټک برعکس د رحمٰن بابا د کور نۍ غړي د رحمٰن بابا د فیض نه فیضیاب نه شول.

پروفیسر خواجه محمد سائل د پښتو د اد بیاتو اسوسی ایټ پروفیسر دے چې نن سبا ګورنمنټ کالج پېښور کښې خپل فرائض ترسره کوي. دې نه علاوه د پرائمري ټېکسټ بُک پښتو ټرانسلېشن پراجېکټ ډائرېکټر دو. چې د پرائمري په سطح د پښتو ذریعهٔ تعلیم او د پښتو جدید معیاري لیکلار او املا رائج کولو کښې د دوئ کوشش اونه یار هر چا ته ښکاره او څرګند دے.

لکه چې وینلے شوی دي پروفیسر خواجه محمد سائل د یو غزلګو شاعر په حېث هم خپل ځان متعارف کړے دے او د غزلو یوه وړه شان مجموعه یې هم مرتب کړې ده. خو موصوف د یو شاعر سره سره یو ښه نثرنګار هم دے چې د تنقید او تحقیق په لړ کښې د پرېنه یات شهرت لري. د دهٔ د عبدالحمید بابا په حقله تحقیق چې په کال ۱۹۸۵ء کښې چاپ شوے دے، په پښتو ژبه او ادب کښې یوه غوره او ګټوره اضافه ده. دا د دهٔ اولنے نثري تصنیف دے. هم د دې په وجه دهٔ په ادبي دُنیا کښې خپل ځان د یو محقق په حېث متعارف کړے دے او ځان له یې یو جوت مقام پیدا کړے دے. دې نه پس سائل صېب "ګوري اسپې" نومې تصنیف په کال ۱۹۹۱ء کښې لیکلے او شائع کړے دے چې د دهٔ نې د یو مؤرخ په حېث د پره ښهٔ پېژندګلي کړې ده - په ذکر شوي تصنیف کښې د پر داسې تاریخي او معلوماتي مواد شته

۴- د پاسبان رحمٰن کونسل ۹۳-۱۹۹۱ء انعام یافته کتابونه:

چې د پښتون د ملّي تاریخ څخه ورکې کړې ترې تورلاسه کېدے شي. په دې کتاب کښې د خلیل، مومند، داؤدزي او یوسفزي وغیره قبائل متعلق د بابر د شانه تر زماني کافي معلومات په یو نوي انداز کښې موجود او تحریر دي.

"رومانویت او عبدالحمید بابا" د پروفیسر خواجه محمد سائل دریم نثري او تحقیقي تصنیف دے. لکه چې څرګنده ده، دا هم د عبدالحمید بابا په حقله دے که دې نه مونږ د عبدالحمید بابا د بیکلے شوي رومېني تصنیفا دوېمه برخه ووایو نو بې ځایه به نهٔ وي ځکه چې صرف رومانویت یو داسې موضوع ده چې په ذکر شوي رومېني تحقیق کښې د بحث نه پاتې شوې ده، نهٔ شو ویلے چې دا شعوري طور وه که لاشعوري طور.

لکه چې څرګنده ده د پروفیسر خواجه محمد سائل زیرِ بحث تحقیقي مقاله دوؤ لویو اهمو موضوعاتو سره تعلق لري:

(ا) رومانویت.

(ب) عبدالحمید بابا.

فاضل مُصنّف ذکر شوي دواړه موضوعات په اووؤ بېلو بېلو برخو وېشلي دي.

د مقالې اوله برخه یعنی شروع یې هغه ابتدائي تاریخي حالاتو او واقعاتو سره تعلق لري چې برصغیر پاک و هند کښې د مغلو د زوال او د انګریزانو د عروج سبب شول. د لته په دې حقله یو مفصّل او مدلل بحث هم شوے دے چې انګریزانو په دې علاقه کښې خپله

قبضه، طاقت او حکومت څخه قایم، دایم او جاري وساتلو؟ انګریزي
ژبې څخه دلته یو همه ګیر شهرت او رواج وموندلو؟ بله دا
چې د دې ژبې ماخذ او مغز څه دے؟

سائل صیب لکه د اُردو ژبې انګریزي ژبې ته هم
د دې د ماخذ (ORIGIN) او اصل نسل ترمخه یو "لشکري ژبه"
وائي څکه چې د ذکر شوو دواړو ژبو د جوړښت عوامل او عناصر
سره خپلو کښې ډېر زیات مشابهت او مناسبت لري.

د دې نه پس ښاغلے سائل د انګریزي ژبې په صوتي
نظام (PHONETIC SYSTEM) یا صوتیات (PHONOLOGY)
باندې بحث کوي او وائي چې د دې لړ کښې دا ژبه ډېرې نیمګړتیاګانې
لري او په دې حقله څو بېې شمېره مثالونه هم ورکړي دي
دلته باید دا خبره وکړو شي چې د دُنیا هره ژبه خپل یو مخصوص
مزاج، ځانګړي اُصول، وضع شوے نظام او مروّج قواعد لري
چې د دې په ذریعه دغه ژبه وېلے او ذده کولے کېږي. خو
د دې باوجود ځنې داسې مستثنات (EXCEPTIONS) هم لري
چې بغیر د اهل ژبې نو نورې بل څوک نه پوهېږي او هم
دغه د ژبې په زده کړه او پوهېدلو کښې ډېر مسائل او
مشکلات پیدا کوي که چرې دا مستثنات (مشکلات) نه وے
نو په اهل ژبان او غیر اهل ژبان کښې به هېڅ فرق نه وو.

د دې نه پس فاضل سیکوال د اُردو ژبې هم دغه دول

مسائیلو او مشکلاتو ته اشاره کړې ده او پښتو ژبه یې په دې حقله
خوش قسمته ګڼلې ده. دلته دا خبره کول به بې ځایه نه وي چې نورو قامونو
ته به هم د پښتو ژبې په زده کړه او په هغه لیکلو کښې هم دغه هومره مشکلات
وي څومره چې مونږ د انګرېزۍ اردو یا نورو ژبو په زده کړه کښې لرو
ځکه یو ځل بیا دا خبره تکراروم چې د هرې ژبې خپل مزاج نظام او خپل
قواعد وي او ژبه رژبې ) د دوئ تابع وي.

سائل صیب د اردو ژبې ځنې الفاظ هم اوازه ګڼلی لکه بیټا، بیٹھا،
توړا. تھوړا او داسې نور. حالانکه څنګه چې دا الفاظ هم املا نه دی،
دغسې دا هم آوازه هم نه دی. هر څو که اردو ژبه کښې دا قسم مرکب
آوازونه لکه تھ، ٹھ، پھ وغیره په حروفِ تهجي (ALDHABET) کښې
شامل نه دی. خو بیا هم دوئ خپل یو مخصوص حلقیز اواز لري چې بل
حرف سره یو ځای یو مرکب اواز پیدا کوي. البته دا خبره یې درسته
ده چې پښتو یوه صوتي ژبه ده چې د هر غږ د پاره خپل مخصوص
علامت (SYMBOL) لري چې یو طالب علم ته د یو لفظ یا حرف صحي تلفظ
(PRON UNCIATION) کول اسان دي راسانوي).

خواجه سائل د دې تاثر ورکولو کوشش هم کړے دے چې یوه
ژبه کښې متجانسین یا متشابه الفاظ (SIMILAR WORDS) یو عیب
دے خو په حقیقت کښې دا عیب نه بلکې د ژبې حسن، ښکلا، خوبي او
صفت دے. د دې خبرې د وضاحت او تشریح د پاره پکار ده چې د

راقم الحروف د یوې مقالې څنې برخې لوستونکو ته وړاندې کړې شي
"د ډنیا په هره ژبه کښې متجانسین او متشابه الفاظ
(SIMILAR WORDS) موجود دي۔ دا په ژبه کښې فصاحت
او بلاغت پیدا کوي. په کلام (منظوم یا منثور) کښې خوږوالے
رواني، اثر او ښکلا ته بیږ وي۔ د دې الفاظو شکل، هیئت
(FORM) یعني املا، تلفظ (آواز۔ صوت) او د حروفو ترتیب
تعداد تقریبًا یو شان وي خو معنې ئې مختلفې وي
چې په کلام یا بیان کښې واضح کیږي. د لفظي صنائع د ډېرو قسمو
دا چې یو قسم ته ئې صنعت تجنیس (HOMONYM) وئیلے شي. د
تجنیس لغوي معنیٰ ده: "هم جنس کول، یو شان کول، د علم بدیع
په اصطلاح کښې د هغه صنعت نوم دے چې دوه یا د دوو نه زیات یو
شان لفظو ته یکښې په بیلو بیلو معنو استعمال شوي وي" ظفر اللغات
میاں بهادر شاه ظفر کاکاخیل)

هم املا، هم تلفظ او هجور (SYLLABLES) کښې یو شان
نو معنو کښې مختلف الفاظ: هغه لفظ چې د یو بل لفظ په شان آواز او
شکل لري (قومي انګریزي اردو لغت۔ مؤلف ډاکټر جمیل جالبي ص ۹۲۸)

هم جنس کېدل، یو شان کېدل، د علم بدیع د یو صنعت نوم دے
چې یکښې په یوه فقره، مصرعه یا یو شعر کښې دوه داسې لفظونه راوړې
چې دواړه یو بل سره د ډېر مشابهت لري یا یو شان وي او معنې ئې بدلې

(۱) فرهنګ حدیقهٔ ختک ـ سید انوارالحق ص۲۸۷)

دَ صنعتِ تجنیس ډېر قسمونه دي، دلته مونږ په دې حقله دَ پښتو دَ مختلفو کلاسیکي شاعرانو دَ کلام نه یو څو نمونې وړاندې کوُو.

ـه ستا له غمه مې په مخ باندې ولګې دي
لوږې مې وپوښته له حاله چې ولګې دي (رحمٰن بابا)

ـه وآر دې سا نه شهٔ وآرته کوره وآر دې بانهٔ دے
نهٔ دا هومره وآرچې تېر توچارې وآر کړې (علیخان)

ـه چې چیچلے دې دَ عشق نې دَمه مار یم
خود به دَم دا څخه وکاږم یو دَم (حمید بابا)

ـه وسومه دَ غوَد غوندې دَ غم په اور
څکه لکه غوَد غوندې فغان کړم (کامګار خان ختک)

ـه وخوړم زهٔ بې کاره کسې چې بې یاره کسې کسې
کسې هله مې بکار دي چې دَ یار کسې پرې کسم

دې نه علاوه ځنې مرکب الفاظ هم دي چې ورته صنعتِ تجنیس مرکب متشابه وائي لکه.

ـه لکه کاندې په کونترو نظرباز
هسې زهٔ یم دَ دلبرو نظرباز (رحمٰن بابا)

ـه تن ئې پا تې شي بې سره سر ئې لاړ شي
سودا رکله دے سودا رکړ دې دُنیا (رحمٰن بابا)

سب علي محقق د پښتو ژبې د دوه بنيادي (۲) عمومو لهجو (DIALECTS) شمالي اضلاع او جنوبي اضلاع. تر مينځه په فرق هم کافي بحث کړے دے. د لته دا خبره کول ضروري دي چې د دُنيا په ټولو تقريباً هره ژبه کښې او مختلفې لهجې لري. چې د يو ملک په مختلفو سيمو کښې ويلے شي خو بيا هم د ليک لوست د پاره ئې يوه معياري لهجه (STANDARD DIALECT) ټاکلې شوې وي. پښتنو د يوسفزو لهجه معياري گرځولې ده. ټول پښتانه من حيث القوم په دې متفق او يوه خوله دي. خوشحال خټک - رحمٰن مومند او ز مونږ نورو کلاسيکي شاعرانو په خپلو شعرونو کښې هم دغه لهجه استعمال کړې ده هم دغه وجه ده چې مونږ د يو پښتون د خبرو اترو نه خو دا انداز ه لگولے شو چې د دهٔ تعلق د کومې سيمې سره دے خو د هغهٔ د ليک نه دا انداز ه نهٔ شي لگيدے. بله دا چې د هرې ژبې دوه لهجې وي يعني د خبرو اترو يا تقريري لهجه (SPOKEN DIALECT) او د ليک لوست يا تحريري لهجه (WRITTEN DIALECT)

فاضل مصنف د زير بحث مقالې په دويمه برخه کښې د انگريزي ادب د مختلفو دورونو (PERIODS) په خصوصياتو او رجحاناتو مکمله رڼا اچولې ده او دې سره څنگ په څنگ ئې د پښتو د قديم، ابتدائي او کلاسيکي ادب (خوشحال او رحمٰن پورې) رومانوي خصوصيات هم څرگند کړي او ذکر کړي دي. تر دې چې د ذکر شوو رومانوي خصوصياتو لټون ئې د متصوفانه شاعرانو په کلام کښې هم کړے دے لکه چې وائي!

"د روښاني تحريک د عقيدتمندو شاعرانو عقيدت او ارتيا b

کۀ هر څو د تصوّف د وحدت الوجود مسلک څخه دی، خو د وحدت الوجود (همه اوست) یا وحدت الشهود (همه از وست) عقائد که فارسي پښتو وغیره مشرقي ژبو کښې د غزل په صنف سخن کښې عام شهرت او رواج لري، نو یل اړخ ته د توحید ذکر او اظهار د کائنات او فطرت د عناصرو او اجزاؤ په رڼا کښې بیانول یو قدرتي امر وو

زړه چې ډېره ډېره مینه په کائنات کړم
په هر رنګ کښې ننداره د خپل یار کړم
کل ذره مې د نظر ته آئینه شوه
په هر څه کښې یو آشنا وینم څه راته"

(میرزا خان انصاري)

د دېمه برخه د مغربي یعنې انګرېزي ادب د رومانویت (ROMANTICISM) تشریح او تفصیل سره تعلق لري چې پکښې د مغربي رومانویت صفات او خصوصیات په تفصیل سره بیان شوي دي. نه علاوه د رومان (ROMANCE) او رومانوي (ROMANTIC) ترمینځه فرق هم واضح کړے شوے دے. فاضل مصنف د خپل نقطۀ نظر مطابق د رومانویت تعریف داسې کوي:

"چې یو انسان د خپل ذات د جذباتو شدت د فطرت د رنګینو عکسو نو په رڼا کښې محسوس کړي او محض جذباتو نه مغلوب نه شي نو دغه رومانویت دے. د کومو شاعرانو

په کلام کښې چې تصوف، وحدت الوجود، وحدت الشهود
پند ونصیحت یا قومیت دَجذباتو شدت سره بیاشوی
دې نو مونږ هغوئ دَصوفي یا قومي شاعر په حیث
پیژنو، او که دَعشق ومحبت دَاندروني کیفیت دغه
سر یکې او درد نه ډکې نغمې او اشعار دَ فطرت
په رنګونو دَرنګین حُسن وجمال متعلق وی نو مونږ
ورته روماني شاعر وایو۔"

دلته باید چې زهٔ دَرومانویت یو مختصر تعریف ولنډه شان
تشریح دَ دې دَ وضاحت په لړ کښې وکړم:

"دَ دُنیا دَ هر ادب تقسیم عام طور سره دَ کلاسیکی ادب او رومانوی
ادب په ذریعه شوے دے۔ دَرومانوی ادب دَ پاره تنوع، عمل
حرکت او ځلنده مستقبل ډیر اهم دی۔ کلاسیکی ادب لفظ وبیان او
اسلوب ته توجه ورکوی۔ د یکښې دَ تنوع برعکس دَ وحدت او تنظیم
عنصر نهایات جوت دے۔

دَ انګریزی ادب دَ اتلسمې صدۍ دَ کلاسیکی شاعرۍ ډکشن
(DICTION) مصنوعي او رسمي وو۔ دا موعظانه وو چې دَ اخلاقیاتو
درس ورکوی او پند ونصیحت سره تعلق لری۔ دا طنزیه او هجویه
(SATIRE او IRONIC) هم وو۔ دَ دې تعلق عام طور سره دَ ښار
مهذب او شائسته ټولنه سره وو۔ په نورو ټکو کښې دَ دې ادب
تعلق د ډرائنګ روم سره وو۔ په دې وجه دې ادب دَ جذباتو

په ځانګړي ذهن ته اپیل کولو بل طرف ته رومانوي شاعري د دې عناصرو ښکاره کوي. د دې رد عمل اظهار د ولیم وردز ورته او کالرج په مشترکه تصنیف لریکل بیلډز (LYRICAL BALLADS) کښې شوې دے، هم دوئ د رومانوي تحریک بنیاد اېښودونکي او پیشرو دي. د انګریزي ادب رومانوي دور د شاعرۍ دور ګڼلے شي. او د دې برعکس د کلاسیکي ادب دور د نثر دور بللے شي.

د انګریزي ادب د رومانوي تحریک (۱۷۹۸ء تا ۱۸۳۲ء) د ټولو نه اهم او مهم عنصر "فطرت ته مخه کول" (RETURN TO NATURE) دے. د وردز ورته (WORDSWORTH) شاعري د دې یو ډېر ښه مثال دے د ده خپل ټول مضامین او موضوعات د فطرت نه اخستي دي. د رومانوي ادب د ټولو نه اهم عنصر تخیّل او جذبه دے، د کیټس (keats) (LA BELLE DAME SANS MERCI او د کولرج (COLERIDGES) کُبلا خان (KUBLA KHAN) غوندې نظمونه په تخیّل اډانه دي. په اتلسمه صدۍ کښې دا قسم نظمونه لیکل ناممکن وُو.

د رومانوي ادب اکثر نظمونه د ذهن په ځای زړه ته، د فکر په ځای جذبې ته، د دلیل په ځای تخیّل ته اپیل کوي. د دې نظمونو کښې براهِ راست پند و نصیحت او د اخلاقیاتو درس نشته. که څه دے هم نو هغه بالواسطه دے. د دې ادب کښې خالص اخلاقي، واعظانه، طنزیه او هجویه نظمونه نشته.

دَ اتلسمې ۱۸ صدۍ شاعرانو فطرت سره هیڅ مینه او دلچسپي نه درلوده کۀ دوئ به خپلو نظمونو کښې دَ فطرت ذکر کړے هم دے نو غیر شعوري طور. دَ دې برعکس دَ نولسمې ۱۹ صدۍ دَ روما نوي شاعرانو فطرت سره ډېر مینه وه. ورډز ورتهـ انګرېزي ادب کښې دَ ټولو نه لوئ فطرت نګار شاعر تېر شوے دے. ورډز ورتهـ پخپلو نظمونو کښې فطرت ته یو عظیم مقام ورکړو او دَ دې فلسفیانه اړخ ئې جوړ کړو. دغسې کالرج، بائرن شېلے، کیټس او سکاټ هم فطرت نګار شاعران دی.

فطرت نه علاوه دَ روما نوي شاعرانو یو څو نور مشترکه خصوصیات دادي:

۱. انسان او انسانیت سره مینه کول. متنوع بحور (اوزان) متعارف کول. موضوع سره سره اهنګ وزن، او غنائیت ته توجه ورکول. خپلې مخصوصې محاورې وضع کول او نوي نښکلي الفاظ استعمالول دَ بیانیه نظمونو په ځائې قصصي نظمونه لیکل او داسې نور.

دَ پورتنو مشترکه خصوصیاتو نه علاوه په روما نوي شاعرۍ کښې څۀ داسې خصوصیات او صفات هم موجود دي چې مخصوصو شاعرانو سره تعلق لري. مثلاً ما فوق الفطرتي (SUPERNATURALISM) عنصر یوا هم روما نوي صفت دے. کولرج دَ ما فوق الفطرت نګارۍ اُستاذ دے، په (ANCIENT MARINER) کښې دَ هغۀ ما فوق الفطرتي عنصر نفسیاتي دے. سکاټ هم ما فوق الفطرتي نظمونه لیکلي دي خو دا ئې خونده.

دی۔ دَ کیټس ځنې نظمونو کښې هم ما فوق الفطرتی عنصر موندے شی. LA BELLE DAME SANS MERCI کښې یو ما فوق الفطرتی ماحول موجود دے۔ بائرن دَ نورو خصوصیاتو نه علاوه دَ حزن و ملال او سوز لوګداز دَپاره مشهور دے۔ دا عنصر دَ هغهٔ "CHILDE HEROLD" کښې په اسانه موندے شی۔

حُسن سره مینه یو بل رومانی صفت او خاصیت دے شیلے او کیټس حسن و جمال ( دَ فطرت او هم دَ انسان ) سره ډیره جذباتی مینه لری کیټس وائی "حُسن صداقت دے او صداقت حسن دے"، "ښائسته څیز همیشه دَپاره دَ خوشحالی باعث وی. په دې حقله شیلے (A HYMN TO BEAUTY) لیکلے دے۔ یونانی دیومالا (GREEK MYTHOLOGY) په کیټس او شیلے ډیر نه یات اثر کړیدے او تر څهٔ حده په بائرن هم۔ دې دَپاره یونانی دیومالا سره مینه یو بل رومانوی صفت دے۔

ورډزورتهه دَپاره فطرت کښې روحانیت موجود دے۔ فطرت سره هم دې مینې او دلچسپۍ دے په انګریزی ادب کښې دَ وجودی نظریې (PANTHEISM) خاوند وبلکو۔ یو معمولی ګزرے هم دَ هغهٔ دَپاره څهٔ نه څهٔ پیغام باعث دے لکه چې وائی :

To me the meanest flower that blows can give
Thoughts that do often lie too deep for tears
For oft, when on my couch I lie,

In vacant or in pensive mood,
They flash upon that inward eye,
which is the bliss of Solitude
And then my heart with pleasure fills,
And Dances with the DAFFodils.

دَ وردز ورته دَ ذهنی او روحانی ودې سبب دَ هغهٔ فطرت سره مینه ده۔
دَ هغهٔ نظمونو کښې دَ هغهٔ نوموړي کردارونه دَ دُنیا مشهور خلق نهٔ دي بلکې
ساده زمیندار، شپونکي او دَ کلو وسېدونکي دي۔ هغهٔ ډېر نزدې نهٔ دَ فطرت
مشاهده کړې ده۔ هغهٔ فطرت دَ چا یا دَ څهٔ په ذریعه نهٔ بلکې په خپلو سترګو لیدلے
دے او مطالعه یې کړې ده، ځکه چې دے دَ فطرت په غېږ کښې زېږېدلے او
لوئې شوے دے۔ هغه فطرت خپل رهنما، فلاسفر، دوست او استاذ ګڼي۔

کیټس دَ حُسن شاعر دے دَ هغهٔ سبوائې دَ حُسن نهٔ بل یو مذهب هم
نشته یعنی حُسن دَ هغهٔ دین او مذهب دے۔ هغه دَ حُسن پرستش کوي۔
حُسن دَ هغهٔ دَ پاره یو عظیم صداقت دے۔ کیټس پهٔ لاندنیو اشعارو کښې دَ
حُسن فلسفه په دې ډول بیانوي:

A Thing of Beauty is a Joy for ever
its loveliness increases, it will never
Pass into nothingness
Beauty is truth, truth Beauty – That is all
Ye know on earth, and all ye need to know

دَکیټس نمائنده نظمونه دادي:

ODE TO AUTUMN, ODE TO NIGHTINGALE,

ODE TO GRECIAN URN

کیټس دَ حسیاتو (SENSUOUSNESS) شاعر دے هغه دَ خپلو پنځو حواسو (SENSES) په ذریعه دَ حُسن نه خوند اَخلی لکه سترګې (لیدل کتل)، پوزه (بوی یوُل) غوږونه (اوریدل)، خوند (دَ څه خوند اخستل) او لامسه (ګوتې وروړل) دلته دَ یو مشهور نظم (ENDYMION) منظومه پښتو ترجمه نقل کوله شی.

حُسن تل وی ذریعه دَ خوشحالئ — تل تر تل وی رنګ په رنګ ئې رنګینی
نه رږه راسیکونی ئې وخت سړ سړ زیاتیږی — فناکیږی نه او نه چرې ختمیږی
داښائست که ورته ځیر شې حقیقت دے — هم انسان له آرام، خوب او صحت دے
هر سحر جوړو ګلونه امیلونه — چې فطرت سره مومینه پیدا شینه
پریشانی ده که دَ نیو خلقو کمی ده — که غمژنې ورځې شپې که تاریکی ده
که بدی ده هر طرفته که تیاره ده — خوشحالی که مو لیدلې چرې نۀ ده

خو چې وو ینو ښکلا نو رږه مو خوشحال شی
چې سپوږمۍ او نمر زمونږ په استقبال شی

چې لرې سورې ذرې او نوې ونې — ترې کښینې لاندې هېڅ له ګډې بوې
دَ نرګس ښکلې ګلونه دی داشانې — دی ښائسته ترې نه چاپېر شنې پانې
دَ ګلو اوُبۀ ګوره تکې سپینې — چې بهیږی دَ کوهه نه لرې لرې
جارې بوتې دی ځنګل کښې هم بیلیل — ورسره هم ځنګلی دَ ګلاب ګل

شان شوکت مولوي هسې مشران — چې اوده د مرګ په خوب دي اوس خواران

هم هغه ښې ښې قیصې دي ښکلې ښکلې — چې مونږ لوستې دي او هم مو اوریدلې

دا ښکلا یوه چینه د حقیقت ده — جاري شوې مونږ د پاره له جنت ده

شیلي د فطرت او ژوند په حقله خپله فلسفه نظریه او عقیده په دې ډول وړاندې کوي،

O! Lift me as a wave, A leaf, A Cloud!
I fall upon the Thorns of life! I bleed!

دلته زه د شیلي د یو نظم O! Wind

If winter comes, Can spring be far behind

"Music when soft voices die"

خپله منظومه پښتو ترجمه وړاندې کوم:

ساز چې ونغږیږي هر کله اورېدل شي
یوه ښکلې دائمي برخه د ژوند شي
هم ورېږي چې پاڼې پاڼې شي ګلونه
همېشه وي د بوی حِس لره خوندونه

د ګلاب پاڼې چې مړاوې شي ګلاب
بستره وي معشوقې لره د خواب
دغه شانې چې ته نه یې ستا خیالونه
شي باعث د مُحبّت ښکلي خوبونه

د رومانوي تحریک په شاعرانو کښې د بائرن (BYRON) نوم سرفهرست دے

دهٔ د خپلې زمانې په ادب سیاست او معاشره ډیر اثر کړے دے. اقبال پیام مشرق کښې په بائرن خو اشعار لیکلی دي چې یو پکښې دا دے

خیالِ او چه پری خانه بنا کرده است
شباب غشی کند از خندهٔ لب بامش

د انګریزي ادب ټول شپږ عظیم روماني شاعران دي چې په دوو ګروپونو کښې تقسیم شوي دي. ورډز ورتھ، کولرج او سکاټ د مشرانو او بائرن شیلے او کیټس د کشرانو ګروپ سره تعلق لري:

د انګریزي ژبې بهترینه شاعري د رومانویت خاصیت او کیفیت لري. د ټولو نه پخه دور او د انګریزي ژبې د منظوم ادب په تاریخ کښې د ټولو نه لوئې نوموته هغه دي چې د رومانویت روح سره تعلق لري. صرف د اتلسمې صدۍ کلاسیکیت د دې روایت نه په ډډه وو. تیرو شوو څلورو پیړو کښې دریو پیړو (یعنې شپاړسمې، اوولسمې او نولسمې) رومانویت تخلیق کړو او صرف یوې پیړۍ (یعنې اتلسمې) کلاسیکي شاعرۍ ته وده ورکړه. موجوده نیمه پیړۍ ذکر شوو دوو سکولونو (رومانویت او کلاسیکیت) کښې امتزاج پیدا کړے دے. خو بیا هم زیات حیان ئې رومانویت طرف ته دے.

د مذکوره مقالې څلورمه برخه کښې د روماني ادب د شاعرانو ادیبانو د اجتماعي خصوصیاتو سره سره د دوئ مخصوص او انفرادي خصوصیات هم د دوئ د نظمونو وغیره په رڼا کښې واضح کړے شوي دي

دَدې مينځ ترمينځه مقاله نګار د پښتو د څنې شاعرانو، د دوئ د
فطرت نګارۍ او رومانويت پرستۍ په لړ کښې هم ذکر کړے دے.
پينځمه برخه کښې ئې د عبدالحميد بابا د رومانويت چې د سائل
صيب د مقالې دويمه اهمه موضوع ده، تشريح کړې ده لکه چې
څرګنده ده د عبدالحميد بابا د رومانويت کښې ارخونه دي، په دې
وجه دا نګرنه زبې د رومانوي شاعرانو منفرد رومانوي خصوصيات
تول په اجتماعي شکل کښې د حميد بابا په کلام کښې موجود دي. مثلاً
د کليوال ژوند او ماحول عکاسي، متنوع بحور (اوزان) رديف،
قافيې وغيره استعمالول، سوزوګداز، شعري صنعتونه رمنا ئع
بدائع) د فطرت مختلف عناصر او عوامل (OBJECTS OF NATURE)
مثلاً ګل وبلبل، ستورې سپوږمۍ، سپرلے خزان. خال وخط، زلفې او
رخسار، نمر سپوږمۍ، مے او شونډې وغيره. نازک خيالي، سحري
علامات، غنائيت، جذباتيت او داسې نور.

د ګل خان او جمال خان واقعه په

په پردو مرا نه نه کيږي ې بې خپلو
لالحده دا او ژ جمال جلال که

ګل او بلبل ه

نه دے ګل د ستا د مخ خوش رنګه
ګل جلوه په يوه رنګ کړې ته سل رنګه
لکه ته نچې چې زما په درد و داغ کړې    بلبل نه کړي په ګل هسې آنند وانه

شونډې، رخسار، مخ، خال وخط، قامت ـه

هسې نه که ستا د قامت په خیال تکیه کړم

هر نفس لکه موسیٰ کړه په عصا

ـه چې نې ستا په ګل رخسار باندې نظر شي

آئینه شي د نرګس په دود حیرانه

ددې په ورځ ډېر روښانې د مخ نه یاتیږي

نوې میاشت چې دیا روانه په رکاب شوه

چې ئې ستا آتشي شونډې په زړه ګوزي

څه عجب که د هغو سینه کباب شوه

چې مشغول دا ستا د مخ په خال وخط شوم

مشغوله را څخه پاتې د کتاب شوه

نمرسپوږمۍ ـه

زر زوال د ستا د مخ له شرمه وغوري

نمر سپوږمۍ چې ورسیږي ترکاله

باد نسیم ـه

چې وزمه ئې د نسیم په رخسار داغ شي

د بوسې په وخت ورور ته نه شم بیان شوخ

نازک خیالي ـه

له هغه مخه څوک څنګه بوسه اخلي

چې ئې مخ وي د اوموپېښو پېړوے

سوزوګداز: ـه

دَ حمید دَ کاغذي فکر کښتۍ — دَ حیرت په عظیم بحر کې جهان ډوب

چې راغلې په مجنون نه وه هیڅ پرې
هسې سخته ستا له غمه په ما راغله
چې دَ آه په ځای لمبه راڅخه خېژي
نه پوهېږم چې مې خُله ده که تنور دے

## صنائع او بدائع (شعري صنعتونه)

تشبیه واستعاره: ـه

هسې رنګ دَ بنو غشي رسا وُ لي — چې هېڅوک ئې سلامت نه ځي له جنګه

په غبار کښې ئې دَ خط ګوره سرې شونډې
سرې سکروټې دي دَ اور په ایرو نغښتې

دَ چمن ګل او سمن یاسمین څه کړم — چې زما ګل او سمن یاسمین نه ئې

صنعتِ تجنیس ـه

چې ئې ګوري عاشقان واره بې دله — نه پوهېږم چې دلدار دَ چا دے؟

صنعتِ تضاد ـه

دَ وفا دَ طعام خوند به پیدا نه وو — که نمک ورسره نه وے دَ جفا ګډ

صنعتِ ارسال المثل

دَ ملا و ختمو بانه لرې اوبه دي
انسان ئې راباندې هومره زور په خندا،

صنعتِ تکرار (لفظی و معنوی) ـــ

توري ستركي توري زلفي توري وروځي

دا همه توري بلا دي آدم خوري

صنعتِ تلمیح ـــ

رقيبان مې د هجران په اور کښې ولی

د خليل په دود مې ربه! په امان کړې

صنعتِ تربیع ـــ

خپل اثر له هره رنګه، ظاهرېږي فرد په فرد

سور له سوره تور له توره، شين له شنه شي زرد له زرد

متنوع بحور (اوزان) ـــ

څانته ښه وائي ښه نه کړې هغه څه وائي دا څه کړې

---

ربه! تا رهٔ د رقيب نرم په احسان کړې

دا هند و را بانديې څه خو مسلمان کړې

خط په مخ د صنم راغې که سپوږمۍ شوه په هاله کښې

دا څې غاښ په خله کښې زېب کا که ژاله شوه په لاله کښې

دا چې ستا د خرو سترګو اشنائي کا

خمریه شعر ـــ تل به ويږ دي د هغو په خپلخانې

دائې نه که نیم خماري يار د شونډو که مې ونوشل هزار رنګه شراب دي

## انسان دوستي

په حرامه دُ نيا ساړه مشه يو کار ستا

چې سل نور در سره ورانکاندي برهم

## تعليم و تربيت

نا نا ولے نا ويه نه اخلي ادب     او دُ سپوري نخل ته نيسي رطب

## صبر

په ادبو به دې د يوه شي دُ مراد سله

کهٔ صدف غوندې يې په صبر کړې دهان چپ

## غم ښادي

په دنيا ئې دُ چا کار نهٔ پوره کيږي

دا سمان برق و بر ښنا ده دا دُ نيا

او دا سې نور۔

دُ عبدالحميد بابا په کلام کښې دُ نيولوګزم (NEOLOGISM) ډېر مثالونه موندے شي۔ نيولوګزم دُ ژبپوهنې يوه اصطلاح ده۔ دا دُ نوؤ الفاظو استعمالولو او وضع کولو يا دُ زړوا صطلاحاتو دُ نوؤ ځيزونو دُ پاره په نوؤ معنواو مفاهيمو کښې استعمالولو ته وائي.

زما په نظر دُ بايزيد روښان نه وروسته دُ نيولوګزم په مېنځ ته راوړلو کښې حميد مومند دويم ځائې لرى ځکه چې دُ دهٔ په خلورو واړو اثارو کښې دُ نيولوګزم بيلګې ډېرې دى۔

---

له دُ عبدالحميد مومند ياد۔ دُ حميد مومند په اشعارو کښې نيولوګزم۔ سرمحقق دوست شنواري کال ۱۳۶۴ د افغانستان د علومو اکاډمي ۲۷ ۲۸

سر محقق دوست شتواری پخپلې یوې مقالې کښې د عبدالحمید بابا د نیو لوکړم څو مثالونه ددغه اشعارونه ورکړي دي. لکه:

د وچ کوګل، د ښاغلي ستر ګې ګونه زيره ګوښې ګوښې کړي ته ما په اشنا عرض

هسې پاتې شوم د یار پورې مخ تور ے

په جرګه د عاشقانو کښې کوز ګوری

دا حقیقت دے چې د عبدالحمید بابا هرا ړخیزه څېړنه ډېر کار او نا يار غواړي. حمید بابا باندې چې کوز بيا او ډېر پښتو څوا کښې تحقیقیتو خومره کار کړے دے. د خواجه محمد سائل زیر بحث مقاله هم د دغه کار د زنځیر یوه کړۍ ده.

د سائل صیب د ذکر شوي مقالې شپږ مه برخه د حمید مومند سبک او ددې پایو وکارو سره تعلق لري. دغه په دې لړ کښې د کامګار خان خټک او علیخان ذکر په تفصیل سره کړے دے. اوومه برخه کښې ئې د انګریزی ادب د رومانویت او د پښتو ادب د رومانویت فرق په ګوته کړے دے.

د پروفيسر خواجه محمد سائل زیر بحث مقاله "د رومانویت او عبدالحمید بابا" په یوې داسې دقیقه موضوع لیکلے شوې ده چې دې نه مخکښې یا خو په دغه موضوع چا لیکل نه دي کړي یا زما د نظر نه نه دي تېر شوي. په دې وجه ددې مطالعه د پښتو ژبې د طالب علمانو د پاره ډېره اهم او ګټوره ده. کېدے شي چې د سائل صیب ذکر شوې مقاله کښې څه خامي رخامي) یا نیمګړتیا موجوده وي. ښکاره ده چې د پښتو ژبې ناقدين

دهٔ ته دَ کوتې نیولو په ځائې دَ دَهٔ دَ خامیو (خامیو) اصلاح وکړی. ۲۰
نیمګړتیائې پوره کړی. خدائے دې وکړی چې دا تحقیق دَ پښتو ادب
دَ پاره یو سیند او غوره اضافه ثابت شی.

داور خان داؤد
لنډی ارباب
پېښور

# څو خپلې خبرې

عبدالحمید بابا ۱۰۷۵ھ/۱۶۶۵ء تا ۱۱۵۰ھ/۱۷۳۸ء د پښتو ادب د گلستان هغه خوش نوا بلبل دے چې د حسن و جمال باغ و بهار او د باګرام لاله زار یې د عشق د سوز و گداز په ښائسته ؤ نغمو او شعری وږمو معطر کړې دے. عبدالحمید بابا په قام بارړه مومند دے. د بارړه مومندا پښتنه ذیلی ښاخونه، کوکوزی. موسی زی، دوبزی متنی او سرکانی (سروانی) دی او عبدالحمید بابا د بارړه مومند کوکوزی ښاخ څخه تعلق لرو هغه د مغل سلطنت د کمال و زوال دواړو دورونو عینی شاهد او گواه دے او د مغل خاندان د اوؤ بادشاهانو بادشاهی یې په خپلو سترګو لیدلې ده.

---

(۲۷) د دې عبارت د تحریر مفصل دا دے چې ۱۹۸۵ء کښې زما د چاپ کتاب عبدالحمید بابا صـ ۲۱ کرښه ۳-۴، صـ ۲۵ کرښه ۱۶، ۱۷ تصحیح وشي.

محی الدین اورنگزیب ۱۶۵۸ع / ۱۰۶۸ھ تا ۱۷۰۷ع / ۱۱۱۸ھ

(۱) شاه عالم بهادر شاه: ۱۷۰۷ع / ۱۱۱۸ھ تا ۱۷۱۲ع / ۱۱۲۴ھ

(۲) جهاندارشاه ابن شاه عالم ۱۷۱۲ع / ۱۱۲۴ھ تا ۱۷۱۳ع / ۱۱۲۵ھ

(۳) فرخ سیر ابن عظیم الشان ۱۷۱۳ع / ۱۱۲۵ھ تا ۱۷۱۹ع / ۱۱۳۱ھ

(۴) رفیع الدرجات ابن رفیع الشان ۱۷۱۹ع / ۹ ربیع الثانی ۱۱۳۱ھ تا ۱۷۱۹ع / ۲۰ رجب ۱۱۳۱ھ

(۵) (څلور ورځې د پاسه درې میاشتې حکومت)

(۶) رفیع الدوله ابن رفیع الشان ۱۷۱۹ع / ۲۰ رجب ۱۱۳۱ھ تا ۱۷۱۹ع / ۱۷ ذیقعده ۱۱۳۱ھ

(څلور میاشتې حکومت)

(۷) محمد شاه (رنگیلا) ابن جهان شاه ۱۷۱۹ع / ۱۱۳۱ھ تا ۱۷۴۸ع / ۱۱۶۱ھ

د عبدالحمید بابا د ژوند او شاعرۍ په حقله ۱۹۸۵ع کښې چې ما کوم کتاب چاپ شو نو د دغه کتاب په چاپ کولو لوستونکو ما ته دومره ډیر دادات او حوصله افزائي وکړه چې زه په دې سوچ او فکر مجبور شوم چې د حمید بابا د شعري فن متعلق د خپل وس او دست مطابق نور معلومات راټول کړم او قارئین ته یې وړاندې کړم. ستاسو په دعا د عبدالحمید بابا د شاعرۍ متعلق زما بله زیاته او کوشش "رومانویت او عبدالحمید بابا" ستاسو وړاندې یادے.

هیله لرم چې زما دغه بیک تحریر به ستاسو د طبع تسلئ باعث وي او که مانه په دې کتاب کښې څه کوتاهي او سهوه شوې وي نو دغه به زما کم علمي. د معلوماتو کمے او غفلت وي چې امید دے به ستاسو په ډېرنه مشوره، اصلاح او د غوره خیال په استفاده د غه

قسم غلطۍ نه ځان ساتم.

الله پاک دې وکړي چې پښتو ادب کښې د دې نوې موضوع د سرسرې جاج اخستو ضمن کښې کامیاب شم او د پښتو ادب مبتدیان او طالبعلمان ترې مستفید شي.

زه په دې خبره ویاړم چې زما په دې کتاب د پښتو اردو او انګریزۍ ژبو ماهرِ لسانیات دانشور او محقق پروفیسر داور خان داؤد یو پُر مغز او معلوماتو نه ډکه سریزه ولیکله او زما دې وړوکي شان کوشش ته یې پخپل زرین او علمي بحث ښائست ورکړو. زه د هغوی د ډېره شکریه ادا کوم.

زه په آخر کښې د ګورنمنټ کالج پښور د انګریزۍ پروفیسر دلشاد خان شکریه هم ادا کول ضروري ګڼم چې انګریزي ادب کښې یې زما د کم علمیت لارښودنه وکړه. او وخت په وخت یې د رومانویت په موضوع ماته د ځینې غوره کتابونو لوستو مشوره راکړه.

خواجه محمد سائل
بهادر کلے پښور

## ١

دَ انګریز قوم مسکن [١] برطانیه دَ انګلینډ ویلز او سکاټ لینډ په علاقو مشتمل وفاق دے چې په یولسمه صدۍ عیسوی کښې دَ یو متحد ملک په حیث وجود کښې راغلو. دَ برطانیه زوړ تاریخ ښائي چې په پرومبۍ صدۍ قبل مسیح کښې دلته رومن قابض شول او په څلورمه صدۍ عیسوی کښې چې دوی دا علاقه خالي کړه نو په دې ځائې دَ سکینډینویه ملکونو لکه هالینډ، سویډن او ناروے وغیره علاقو قبائل آباد شول. پینځمه[٥] صدۍ عیسوی کښې دَ جرمنۍ اینګلز Angles قبائل قابض شول دَ چا په مناسبت چې دا ځائې دَ انګلینډ په نوم مشهور شو. دې نه پس سیکسن Saxons او جیوټز Jutes قبائل هم کافي تعداد کښې دلته میشته شول او دَ دې ځائې اصلي باشندګان ویلز او سکاټ لینډ ته فرار شول. شپاړسمه صدۍ عیسوی کښې دَ هنري هشتم په زمانه حکومت چرچ آف انګلینډ دَ رومن کیتھولک چرچ نه آزادي حاصل کړه په اتلسمه[١٨] او نولسمه[١٩] صدۍ عیسوی کښې برطانیه په اندروني او بیروني معاملاتو کښې زبردست اهمیت حاصل کړو او یو لوئې طاقت شو[٢]

---

[١] اردو انسکلوپیډیا. فیروز سنز له اول چاپ ص ٢٠٢

[٢] دوم چاپ ص ٢٩٢

دَاُردو انسکلوپیډیا ددې بیان وقعت او اهمیت حقیقت دے چې انګرېز قوم دا تلمې صدۍ دوران دَ پاک وهند په سیمه مسلسل کامیابو او سبقت نه وروستو زبردست وقار حاصل کړو او دَچل وَل او مکر وفریب په سیاست یې دَ بهادرۍ او تکړه توب دبدبه، شان وشوکت او اعزاز بیاموند. دَ مغل سُلطنت ختم شو او انګرېز راج قایم شو. راځۍ چې دَ تاریخ څو پاڼې شاته واړو وُو. اودَ دوئ دَ کامیابۍ یو سرسرې جاج واخلو.

تاسو ګورئ چې دَ نادرشاه ۱۷۳۹ـئه کښې دَ هندوستان پایه تخت "دهلي" تاخت وتاراج نه وروستو مغل سلطنت مکمل طور کمزور او شَل شو. مغل دربار دَ ایراني نژاد شیعه سردارانو دَ سازش نومرکز شو. چې ابوالمنصور صفدرجنګ نواب اوده او دَ دکن شیعه منصبدار میرشهاب الدین غازي الدین ولد غازي الدین بهادر فیروزجنګ ولد چین قلیچ خان نظام الملک دَ دې حرکاتو خاص مشران او سرغنه وُو اودَ دوئ دَ سازش بازۍ او سازشونو په سبب مرهټه دَ پُوبادکن نه تر دهلي راورسېدل.

دَ دکن په سیمه دَ نواب نظام الملک اصف جاه په حکم ۱۷۴۵ئه کښې دَارکاټ په مقام انوارالدین په ډېر مکر وفریب د رنجازره پښتانه په یو وخت او یو ورځ شهیدان کړل او فرانسیسي ګورنر او سپه سالار دو پلې نه یې دَارکاټ دَ قبضې لار هواره کړه غښې ده نه پس نواب

مظفر جنگ المعروف نظام دکن په ۲ فروری ۱۷۵۱ء پښتون سردار همت خان ته د فرانسیسانو په امداد شکست ورکړو او په دغه جنګ کښې زرګونه پښتانه شهیدان شول.

"جب لشکر کرنول آیا۔ تو اُس نے شہر کو لوٹ لیا اور ہمت خان کے تمام اہل و عیال کو قید کر لیا اور اُسکی جان و مال و آبرو سخت برباد ہو گیا۔"[۱]

د دکن په سیمه د غو برابر ولاړ پښتنو شهادت او خاتمه د دکن د مرهټه قوم د فتو حاتو سبب وګرزیده۔ او د هندوستان په یوه لویه برخه قابض شول۔

د دکن نه علاوه د مغل شیعه سردارانو د ملک په نورو اطرافو کښې هم د مذهبي منافرت په اساس په پښتنو ژوند تنګ کړو۔ د بنګال۔ بهار اُړیسه حاکم علي وردي خان ۱۷۴۲ء تا ۱۷۵۶ء خپل پښتون محسن مصطفٰے خان او نور ډیر پښتانه جنګجو سرداران شهیدان کړل۔ او دغلته یې مرهټه او انګریز ته د سلطنت د حاکمیت لار صفا کړه۔ په ۲۳ جون ۱۷۵۷ء انګریز د پلاسي په میدان د علي وردي خان زوم او د دغه وخت حاکم بنګال سراج الدوله ته یو زبردست شکست ورکړو سراج الدوله قتل شو او انګریز د بنګال حاکم شو.

---

[۱] مآثر الامراء جلد سوم صفحہ ۸۵۷

۱۴ جنوري سنه ۱۷۶۱ء دوچې احمد شاه ابدالي د شاه ولي الله، نجیب الدوله او احمد خان بنګښ په دعوت د مرهټه ډیوه پر لویو لښکر ته د پاني پت په میدان شکست ورکړو. او مرهټه سرداران سداشیو بهاؤ، جنکوجي او تکوجي خپل او ګیازره مرهټه لښکر ځخه قتل شول. احمد شاه ابدالي د جهاد فرائض د ادائیګۍ نه وروستو خپل ملک افغانستان ته واپس شو او د مغل شیعه منصبدارانو ته یې لویو لویو صوبو کښې د خپل آزادریاستونو د قیام یو بله غټه موقعه په لاس ورغله. دکن کښې نظام الملک، میسور کښې حیدر علي او اوده کښې ابوالمنصور صفدر جنګ مطلق العنان حاکمان شول.

۲۳ جون سنه ۱۷۶۴ء دوچې د بکسر په میدان انګریز فوج د بنګال سابقه حکمران میر جعفر او مغل بادشاه شاه عالم مشترکه لښکر ته شکست ورکړو. او دغه کامیابي په هندوستان کښې د انګریز سلطنت د بنیاد باعث شو.

سنه ۱۷۷۴ء کښې د انګریز او د اوده شیعه حکمران نواب شجاع الدوله مشترک لښکر د پښتنو مضبوط سلطنت روهیلکنډ ختم کړو. حافظ رحمت خان او زرګونه روهیله پښتانه شهیدان شول. او انګریز سرکار معاشي او سیاسي لحاظ څخه کافي مضبوط شول.

سنه ۱۷۷۹ء کښې د میسور شیعه حکمران حیدر علي د مذهبي منافقت په اساس د عهدنامه مدراس مطابق د انګریز سرکار په ملسه او حمایت د پښتنو مضبوط کړه کړپه، کرنا تک، سوانوت او کنجي کو ټ تالا تر غه کړل

دَ عبدالحکیم میاڼه (مومند) زړګونه روهیله پښتانهٔ ملګری یې شهیدان کړل- او دکن کښې دَ مرهټه قوم مخالف دَ پښتنو دغه دَ وُسپینې دېوال ریاست یې نیست ونابود او وِران کړو- نتیجه دا شوه چې میسور دَ مرهټه او انګریز سرکار دَ حملو مرکز شو. چې آخر کار په ۵ مئی ۱۷۹۹ سنه دَ سرنګاپټم په مقام دَ حیدر علی ځوانمرد او بهادر زوئې فتح علی خان المعروف ټیپو سلطان دَ انګریز سرکار لښکر نه شکست وخوړو او میدان جنګ کښې قتل شو-

دَ مغل دربار سازشی ماحول او دَ شیعه سردارانو منافی او خودغرضئ نه یوازې دَ پنجاب په سیمه دَ سِکهه سلطنت بنیاد وګرزیدو بلکه دغلته سِکو نه کاله راسې اباد مُسلمان او پښتون دَ رسوایئ او بدحالئ ښکار شو. دَ رنجیت سِنګهه دَ ظلم وستم او بربریت په سبب زړګونه مسلمانان پېښور، هزاره، کوهاټ او ډېره اسمٰعیل خان کښې په پناه اخستو مجبور شول چې اوس مونږ دغه خلق دلته دَ هندکی او سرائیکی اقوام په نوم پېژنو-

دَ سِکهه سلطنت کهٔ هرڅو دَ خیبر لمنو ته را ورسیدو خو دَ امیرِ افغانستان او پښتنو دهشت او دبدبه به دَ غوئ ناره نه بهر نهٔ شوه مارچ ۱۸۴۹ سنه دو چې دَ سِکهه دغه خونخوار سلطنت هم اختتام ته ورسیدو او دلته دَ انګریز بادشاهی قائم شوه -

دَ مغل سلطنت دَ زوال دې معمولی شان جائزې مطلب دَ برصغیر

پاک وهند تاریخ بیانول مقصد نهٔ دی، بلکه هغه حالات بیانول دی د کوم په ذریعه چې انګریز د دې ملک مالک شو. هغوئ سنه ۱۶۰۰ راسې دلته د ایسټ انډیا کمپنۍ په حیث د تجارت په غرض راغلی وُو. دوئ څخه سم ډچ ایسټ انډیا کمپنی سنه ۱۶۰۲ راسې فرانسیسوی ایسټ انډیا کمپنی سنه ۱۶۶۴ راسې او پرتګال تجارتی کمپنه هم موجود وې. او د اورنګزیب د وفات ۱۷۰۷ء / ۱۱۱۸ھ نه وروستو دوئ ټولو د مغل سلطنت د متزلزل او غیر یقینی مستقبل جاج اخیستو. انګریزا ایسټ انډیا کمپنی د سازش، افواتفریه او چل ول په سیاست د نورو یورپي تجارتي کمپنو په نسبت نهایات پوهٔ او هوښیار وُو. هغوئ د پاک وهند خلق ډېر په چالاکئ او منافقت خپلو کښې راسې وجنګول چې د هغوئ ټوله سرمایه او مالی وسائل يې خپل کړل او د پاک وهند استوګن يې د ټوک دویه پامنه دار کړل او ډېر زر يې غلامان کړل. حقیقت دا دے چې د مغل بادشاه فرخ سیر سنه ۱۷۱۳ تا سنه ۱۷۱۹ بادشاهت راسې د انګریز تجارتی کمپنۍ مخ په کمال او مغل سلطنت دُویه زوال وو. د حکومت هند ټوله اَتا ته او د عوام محنت مزدوری تاج برطانیه پلوٗ ډېر په تېزئ منتقل شوه او انګلستان سیاسی، معاشی او ذهنی ونده هر میدان کښې یو مستحکم حکومت شو. د غه وجه وه چې انګریزئ ژبې هم زبردست فوقیت او اهمیت بیامونده. او د غه دوران د کلاسکیت په یورپه رومانیت ته راورسېده او د کمال و عروج په بام ولاړه دنیا

ته بنکاره شوه.

برطانیه کښې اوس انګرېزي او ویلش ته بې عام ویلې کېږي. انګرېزي
لکه زمونږ د قومي ژبې "اردو" په شان د ډېرو ژبو دوغه ته بېده
په دې کښې د نورو ژبو الفاظ ډېر زیات دي. مثلاً خالص انګرېزي
سیکسن. نارمن او د فرانس په ساحل د آباد ریاستونو د نارمنډي
ژبو الفاظ د غسې د هالېنډ، سویډن او ناروې وغیره ژبو
الفاظ هم کافي مقدار کښې په دې ژبه کښې شامل دي.

دې نه علاوه د لاطینیه او یوناني ژبو الفاظ هم د دې ژبې
یو لویه برخه ده. مونږ که دا وو وایو چې لکه څنګه دکن کښې د مغل
حکومت دوران په وروستي څل د ایران او مغل نژاد فارسیوان
فوجي حاکمانو. د هندوستان د راجپوت وغیره قبائل هندي نژاد
لښکرو او د پښتون نژاد روهیله سپاهیانو تر مینځ د مختلفو ژبو د ویلو
له امله کومه نوې لښکري ژبه "اردو" میدان ته راغله.

نو دغسې هوبهو انګرېزي هم په برطانیه
کښې د مختلف قبائل د حملو او قبضو
په نتیجه کښې یوه نوې لښکري ژبه
جوړه شوه چې نن د انګرېزیه په
نوم شهرت لري.

دې کښې شک نشته چې انګرېزي د دنیا په یوه لویه برخه کښې وېلې او لوستلې کېږي. خو د مختلف قبائېلو او ټبرو د آمېزش په سبب د نظام صوت "Phonetic Approach" له امله کافي نیمګړتیا وکې لري. د ت، چ، خ، ژ، ش او غ د پاره په دې ژبه کښې حروف تهجي نشته. او د دوه حروفو تهجي (الفبا) په جوړښت th ، Ch ، Kh او Zh او gh استعمالېږي. خو د دوه حروف نه جوړ د غه مرکب حروف تهجي هم په مختلفو موقعو او الفاظو کښې خپل یو آواز برقرار نه ساتي او خپل صوتي حالت بدلوي لکه Ch د انګرېزي په دې لفظونو :-

choice, chin, child, chick, chest, touch, rich, such, much, charm, chance, chain, chief, chair, cheap

وغیره کښې که د "چ" په آواز راځي. نو هُم دغه Ch د character

crystle, christ, chaos, chronic, chemistry

وغیره لفظونو کښې د "ک" په آواز وېلې کېږي. او بیا دغه "چ" په

Nature, future, creature, mature, actual

وغیره الفاظ کښې د tu په حروف راوړے شي. د غسې "ش" "Sh" ته وګورئ چې

Shame, shall, shape, show, sheet, shelter, shift, shine, ship, shock, share, shoot, shop, short, shoulder, shrine, shirt, shy

وغیره الفاظو کښې که د "ش" په آواز راځي نو دغه د "ش" د انګرېزي په خپ

د Sia - ssio - Cio - Sio - cie - cia - Tia - Tio الفاظو کښې
Cea - sch وغیره
په شکل کښې هم ښکاره کیږی.

Repetition - exemption - competition - Nation
Position - tuition - constitution - caution

وغیره الفاظ -

(ش = Tia) :- Potential - initial - influential
Negotiation

(ش = cia) :- Racial - special - social -
appreciate - provincial - official

(ش = cie) :- glacier - sufficient - efficient

(ش = Sio) :- tension - suspension - pension

(ش = cio) :- conscious - gracious - suspicion

(ش = ssio) :- session - confession - Admission

(ش = Sia) : Persian -- (ش = Sch) : Schedule - (ش : Cea) :-
ocean

دغه شان که مونږ د "غ" ترجمان gh الفاظ کښو، نو یه:

Laugh - cough - Rough - Tough

وغیره الفاظ کښې gh د "ف" په آواز راځی. او بیا یه:

Right - sight - fight - light - night -
Through - Thought - caught

او نور بې شماره الفاظ کښې هلته وخت آواز نه لری او دغه د "ف" "F" آواز

د Ph په استعمال له په بېله ادا کیږی لکه :-

Physics – Phyaraoh (فرعون) Pharmacy – Phase – Philosophy – Phone – Phonetic – Photo – Phrase

وغیره الفاظ وګوري. "C" د "س" او "ک" او "g" د "ج" او "ګ" په آواز ویل یو بله کړکیچنه مسئله ده لکه gage – cage – civics

وغیره.

د نظامِ صوت Phonetic Approach له مخه د انګریزي ژبې ساخت ډېر نیا ت کړاشري مشکلات لري او د نورو ژبو ویونکو د پاره د دې ښه زده کړه ډېر مشکل او ګران کار دے.

د انګریزي په شان "اُردو" هم د حروفِ تهجّي له مخه کافي تکالیف لري. په دې ژبه کښې د یو ډېر ش الفبا Alphabets نه علاوه کافي مرکب یا معاون حروف یعنې بھ تھ ٹھ.... یھ وغیره موجود دي. او د هند عاژبې د اتولاندې دوه حرفیزه حروفِ تهجّي یا مرکب حروف د اُردو ژبې په نه ده کړه کښې کافي مشکلات خصوصًا پښتنو د پاره پیدا کړیدي لکه بولا، بھولا، بیٹا، بیٹھا چوڑا، چھوڑا، توڑا، تھوڑا، پڑتا، پڑھتا، کیلا، کھیلا، بلانا، بھلانا گدا، گدھا. وغیره. چې د آواز له مخه یو شان الفاظ دي. ولې مطلب او معنیٰ جدا لري. پښتو او د دُنیا نورو ژبو کښې هم د یو آواز دوه معنیٰ الفاظ موجود دي. تو د نورو ژبو په نسبت دا قسم الفاظ پښتو کښې ډېر کم دي.

د مرکب یا معاون حروفو استعمال نه علاوه د اُردو ژبې د

ځینو ټکو صوتي ساخت د Phonetics او تکنیک کښې هم فرق دے
مثلاً د کهیل مشابهه شکل جهیل وګورئ چې د دې شکل الفاظ د صوت
په لحاظ جدا او بېل دي او که چرګه ه، ترینه بهرنه شي او د کیل و
بېل شکل اختیار کړي نو بیا یې هم آوازونه جدا دي.

د صوت په لحاظ پښتو په ډېر مضبوط او مستحکم بنیاد ولاړه ژبه
ده. او د هر غږ Sound د پاره خپل مخصوص علامت
Symbol لري. چې یو طالبعلم ته د لفظ صحیح تلفظ Pronunciation
کول آسان دي. د کمال خبره دا ده چې د نورو ژبو بالمقابل دا د دنیا داسې
واحده ژبه ښکاري چې د حروف لیک لوست نه یې د مذکر مؤنث پته لږي
مثلاً هر حرف چې په دریو حروف لفظ کېږي یا دوه ځل د شونډو په خوزولو
(ا ج د س ک ل م نون)
ادا کېږي نو دغه حروف مذکر دي لکه الف - جیم - دال - سین، کاف، لام - میم - ن
وغیره - او هر حرف چې دوه حرفیز لفظ جوړېږي - یا یو ځل د شونډو په
(ب خ ر ی)
خوزېدو وویلې شي، مؤنث دي لکه بې - خې - رې - یې وغیره.

د لهجې Dialect په لحاظ پښتو ژبه دوه غټو برخو شمالي او
جنوبي اضلاع لهجو[1] کښې ویشل ده چې پخوانی او نوي انګریز لیکوال یې د
Hard Dialect او Soft Dialect په نوم دغه دواړه لهجې په یو
مضمکه خېز منطق او دلیل یاده وي. نه پوهېږو چې دوی ولې د ښ او خ د وصف او
نقص په لحاظ یوه لهجه سخته او بله نرمه ګڼلې ده.

---

[1] له سندهي ژبه پښخه لهجوالي [illegible] ده.

There are two main dialects, the soft South western (Pashto) and the hard Northeastern (Pakhto) varying mainly in the pronunciation of the letter "Kh". The hard speakers -- Pakhtoons — pronounce it like a man clearing his throat before spitting — The soft speakers — Pashtoons pronounce it "Sh".

ترجمه: ,, دوه لوئې غټې لهجې دي. دَ جنوب مغرب نرمه پښتو او دَ
شمال مشرق "پختو" لهجه دَ دې اختلاف غټه وجه دَ "خ" دَ
اداېګئې او وينا په لحاظ ده. دَ سختې لهجې ويونکي ,, پختانه" يې
داسې ادا کوي لکه يو سړے تو کلونه کا هُو خپله غاړه په خ....خ
(خهُ) صفا کوي. دَ نرمې لهجې ويونکي ,, پښتانه " يې ,, ش "
اداکوي. "

دواړو لهجو يو مرکز ته دَ راغونډولو او تفاوت لرې کولو په غرض مونږ
نجوانو ليکوالو پښتو ته يې دَ پاره څلور مخصوص توري ايجاد کړي دي چې
مونږ يې دَ خ - څ - ښ او ږ په اشکال پېژنو او دَ دواړو برخو ويونکي
يې دَ خپلې لهجې مطابق ادا کوي. مونږ که دا او وايو چې دَ پښتو په ليک
کښې يوسفزئ لهجه اهميت لري نو بايد مونږ دا هم ومنو چې دَ
تحرير تر مخه دَ ختک قوم لهجه زيات رواج لري لکه دَ ___ ح

---

Jens Enevoldsen — سيوري ميه کونګ وهم راخته ه - از جينز اين ولډ سن:

کږ- کږنه. کږخودل. ۱۰ بخودل. مخکښې. سپږلے. نخه. خپه. زمکه. نمن. خکلے

بخائې

کښې. کښنه، کښښودل. اېښودل. مخکښې، پسرلے. نخښه. پښه، مزکه. لمن. کښتلے وغیره

دُ شمالی اضلاع وسېد ونکوکه ډیر فارسی الفاظ مغغن کړیدی، نو

دُ جنوبي اضلاع خلق اوس هُم ډیرالفاظ دُ فارسی په شان وائی لکه جنګل

هیڅ. چه. ځائې. چار. جوان. شاخ وغیره

دُ قواعد یا ګرامر په رُو دُ پښتو دُ واحد جمع یا فعلی ګردان په

اُصول کښې که څهٔ هُم کافی تفاوت او فرق موجود دے ولیکن نوروژ بولپښتو

هُم خپل اُصول او مزاج لری الته دُ حروفِ تهجی Alphabets

او صوتیات Phonology په لحاظ پښتو ترکافی حده مکمل او جامع

ژبه ده۔

(۲)

دُ انګریزی ژبې شعری ادب دُ زمانې په لحاظ په څلور و برخو

کښې وېش دے۔

(۱) قرونِ وسطیٰ دور Medieval Period

(۲) الزبتهی دور Elizabethian Period

(۳) دُ بحالیت (برقراری) دور Restoration Period

۴ وکټوریه دور Victorian Period

(۱) قرونِ وسطیٰ ۶۵۰ء تا ۱۴۰۰ء

په انګرېزي ادب کښې د انګرېزۍ ژبې لومړنے شاعر
جیوفرې چاوسر ۱۳۴۰ء تا ۱۴۰۰ء / ۷۴۰ھ تا ۸۰۲ھ دے۔ دهٔ نه مخکښې که څهٔ هم چرې
د برطانیه په زمکه چا لیکل کړي وي نو هغه به د هغه زماني د
فاتح قبائل په ژبه وي۔ لکه سنه ۶۶۵ تا سنه ۱۰۶۶ء انګلو سېکسن
ادبي دور Anglo Saxon Literature دے۔ دې نه پس
سنه ۱۰۶۶ء تا سنه ۱۳۵۰ء د فرانسې د نارمن قبائل په انګلستان د حملو
دور راځي۔

جیوفرې چاوسر د اېډورډ سوم سنه ۱۳۱۲ء تا سنه ۱۳۷۷ء په
زمانهٔ حکومت د مختلف پېشه ورکسانو لکه قصابه جولا، کلکار،
نائي، وکیل، ډاکټر، پادري وغیره په څُله یوکم ۳۹ دېرش قیصې د
Canterbury Tales په نوم لیکلې چې د دغه وخت د
لندن د سماجي ژوند عکاسي کوي او دا د ډېر مشهور تصنیف دے۔

د چاوسر سنه ۱۳۴۰ء تا سنه ۱۴۰۰ء د دې کتاب ژبه د مینځنۍ زمانه
انګرېزي دور ژبه ده چې د انډو یورپي Indo-Europe
خصوصاً انډو جرمني او فرانسیسي ژبانو ډېره ګڼه اثرونه پرېښودي وو
لري۔ د دې کتاب انګرېزي د روسته زماني جدید انګرېزي نه ده
کومه چې سنه ۱۵۰۰ء نه پس ابتدا شوې۔ سنه ۱۱۰۰ء تا سنه ۱۵۰۰ء د مینځنۍ
زمانه انګرېزي Middle Language د لاطیني او یوناني
ژبو د الفاظ نه ډکه انګرېزي ژبه ده۔ خو د دې ټولو خبرو باوجود
چاوسر ته انګرېزي ژبې اولنے شاعر ګڼلے شي۔ دهٔ نه پس

جان ګوور John Gower (مړینه ۱۴۰۸ع) ولیم لېنګ لېنډ پیدایښت ۱۳۳۰ع
جان لېډګاټ J. Lydgatt سنه ۱۳۷۲ع تا سنه ۱۴۵۰ع او الکذاندر
بارکلې سنه ۱۴۷۶ع تا سنه ۱۵۵۲ع د انګرېزي ادب د اولني دور اهم شاعران
یادېږي.

انګرېزي ژبې په کومه زمانه نام ونښان نه لرئ. او سنه ۱۳۰۰ع نه پس د خپل پوسوا ابتدا موئ. نو دغه زمانه د پښتو شعري ادب د امیرکروړ جهان پهلوان ۷۵۶ع/۱۳۹ھ. ابومحمد هاشم سرواني ۸۳۸ع/۲۲۳ھ تا ۹۱۲ع/۲۹۷ھ شیخ رضي لودي ۹۶۲ع/۳۵۱ھ تا ۱۰۰۰ع/۳۹۰ھ امیرنصر لودي، بیټ بابا، اسمعیل سړبني ۱۰۱۰ع/۴۰۰ھ خرشبون ۱۰۲۰ع/۱۱۴ھ او د شیخ اسعد ۱۰۸۳ع/۴۲۵ھ د اشعارو په وږمو او مشالونو معطره او روښانه وي چې د نورو ژبو د الفاظو د امېزش نه پاکه صفا سوچه پښتني الفاظ لري.

۱۱۷۳ع/۵۶۸ھ کښې چې د غور په تخت د غوري قبائل پښتون سردار سلطان غیاث الدین غوري بادشاه شي نو پښتو ژبه خاص اهمیت او وقعت پیا موئ. تاریخي ۱۱۶۵ع/۵۶۰ھ ملک یار غرښتي ۱۱۷۶ع/۵۷۱ھ او شکارندوی سنه ۱۲۲۲ع/۶۰۰ھ د دې وخت او دربار اهم شاعران دي شکارندوی چې د سلطان محمد غوري په مدحه کومه قصیده "القصیدة في المدح" لیکلې ده د دغه قصیدې فطرت نګاري او د پسرلي په صفت دا خوا شعار د پښتو ادب د روما نوي شاعرۍ اولنی د فطرت پرستۍ بولله شکاري.

د پسرلي ښکلونکي بیا کړه سنګارونه
بیا یې ولوند په غرونو کښې لالونه
مزکه شنه، لاښونه شنې، لمنې شنې شوې
طیلسان زمردي واغوسته غرونه
د نیسان مشاطې لاس د مجیدو دے
مرغلرو باندې وښکلل ښونه
د غنمو لو جنډې خاندې او رېږدي ته
نارغونه ښوکښې ناخي نرلي جونه
زرغونو زمکه کښې ځل که لکه ستوریه
چې پر هسک باندې ځلېږي سپین ګلونه
سپینې واورې ویلېږي کاندې بهېږي
لکه اوښې د مئین په ګرېوانو ته
هر پلو د ګلو وږم دے لوڼلے
ته وایه راغله له ختنه کاروانونه
د مسیح په پو به مړو ژوندون بیا موند
پسرلے مګر مسیح شو په پو کړونه
له مړو خاورو یې اغلے ګل را وپوست
روح بېدیا او غریې کړله جنتونه
د هندا روپه خېبر غرونه سپین و رنګیني
چې پر واورو باندې ځل وکه لمرونه

په غورزنګې غورزنګ له ځلې ځکونه باسي
لکه شنې هاتي ښنا کاندې سیندونه [1]

دَ شیخ متی غوریاخیل (۱۲۲۶ع / ۶۲۳ھ تا ۱۲۸۴ع / ۶۸۳ھ) یو معلوم نظم هم دَ دوماڼوی رنګ لوئې شاهکار دے. دَ دغه نظم یو دوه کرښې دلته پیش کوو.

په لویو غرونو، هم په دښتو کښې
په لوئې سحر، په نیمو شپو کښې
په غاړه غږ، او په شپېلو کښې
یاد وېښ لو په شپېلو کښې
نښول ښنا دَ یاد ناری سوري يادي
داستاد مینې تندارې دي
که نمر روښانه، ځ يې سپین دے
یاد سپوږمۍ تند ے ورین دے
که غر دے ښکلے پُرتمین دے
لکه هنداره ځ دَ سین دے
ستا دَ ښکاد دا پلوشه
دا يې یو سپکه نندارکه ده [2]

شیخ ملکیار چې دَ ترنک په سیند (۱۳۲۷ع / ۷۲۹ھ) کښې کومه سندره

---

[1] پټه خزانه ص۵۰ [2] پټه خزانه ص۴۲

وېښلې ده، دې کينې رومانوي ارنګ زخت زيات غالب دے هغه په دې سندره کښې د سپرلي په موسم ترنګ سيند کښې د سيلاب منظر ښائي چې ده ته د اشنا د ديدن په لار کښې يو لوئې خند جوړ دے۔ [1]

ترنګ بهېږي ترنګ بهېږي غاړې ترغاړې
نه مازړګے خو خپل لالے غواړي
که ژوده روده د ترنګ روده خاوند دې پوځ که
چې زړګے مومي نه ما خپله سوده
که نيزدے نيزدے نيزد بېلتون دے زړه نيزه وړے
په ويوزړلے په غم زبون دے
که اوردے اوردے په زړه مې اوردے دا اوربه وُچ که
د ويرنيزونه بل ده چې په نه وردے
غانځنه يوسه سپينې سپوږمه ورنه دوا يه
چې ترنګ تال کړم ستاله خو نګه
که خړو خړو او بوسوان کړئ بېيل ملکيار دے
ياتې له يار دے سوبېي جانان کړي مه [1]

## ۲: الزبتهی دور سنه [illegible] تا سنه ۱۶۶۰

د انګرېزي په شعر ادب خه موده سکوت او خاموشه نه پس سنه ۱۵۱۶

---

[1] پښته خزانه ص ۱۴

تا ۱۵۷۸ء د الزبیتهی دور عبوري دوره یادېږي او بیا د انګرېزي
د شعري ادب نشاة الثانیه Renaissance شروع شي.
او ۱۶۲۰ء پورې جاري وي. دا دور د پنځلسمې ۱۵ او شپاړسمې ۱۶ صدۍ د
ظالمانه جاګیر دارانه نظام خلاف یو آواز او چغه وي.

وائي چې ۱۴۵۳ء کښې عثماني ترک قسطنطنیه قبضه کړه او د
بازنطیني شهنشاهیت یوناني او رومي پوهان د یورپ مختلفو
علاقو ته فرار شول نو هغوئ د خپلې ژبې د کلاسیکي ادب یو
لویه ذخیره ځان سره یورپ ته یوړه او یورپ په ورومبي
ځل د قدیم یونان او روم د فن پارو او علمیت نه خبر شول
د کوم په اساس چې د یورپ د خلقو نوي خیالات او ادب سره
مینه او شناسائي پیدا شوه. د غلته د احیائي علوم
Revival of Learning سلسله شروع شوه چې د
"نشاة الثانیه" په نوم یادېږي. د دې تحریک ابتداء په ورومبي
ځل ایټلي، بیا جرمني او وروستو د فرانس ادیبانو شاعرانو په تتبع
او نقش قدم برطانیه کښې فروغ بیا موندلو او په ۱۴۷۵ء کښې د چاپ
خانې ایجاد، د علوم و فنون په ترقي کښې زبردست انقلاب راوستو.

د هنري هشتم ۱۴۹۱ء تا ۱۵۴۷ء د لور الزبیته اول ۱۵۳۳ء
تا ۱۶۰۳ء په زمانه حکومت ادب او فنون عروج ته ورسېدو.
دا هغه زمانه وه چې انګلستان کښې که زبردست اعلی حکمرانه الزبیته اول
وه نو په ایران کښې د صفوي خاندان عباس اعظم ۱۵۸۵ء/۹۹۳ھ تا ۱۶۲۸ء/۱۰۳۷ھ

او هندوستان کښې جلال الدین محمد اکبر ۱۵۵۶ء / ۹۶۳ھ تا ۱۶۰۵ء / ۱۰۱۴ھ شان مغلو حکمرانان دَدې همعصر بادشاهان وُو.

دغه دوران یورپ کښې فوکلوري یعني دَ عوامي ژبې شاعران او دغسې ولیم شکسپیر ۱۵۶۴ء تا ۱۶۱۶ء دَ دراماې او چت لیکوال او نور دپر قیصص او فلسفي شاعران میدان ته راغلل. دَدې دور یو اهم شاعر ایډ ورډ سپنسر ۱۵۳۲ء تا ۱۵۹۷ء دے چې دَ Faery Queen په نوم یې دَ الفاظي دَ قیصو په شان شپږ جلده کښې دَ نظم یوه تمثیلچه Allegory ولیکله چې وروستو دَ مافوق الفطرت روماني شاعرۍ یو اعلیٰ نمونه وګرزیده. دغه نه پس سر والټر رلې او سر فلپ سډني دَدې دور اهم شاعران دي. دوئ نه وروستو جان ډان، تامس ناش، کرسټفر مارلو تامس ویات، مائیکل ډرائټن، جان لیلے، تامس هیوډ، تامس ډیکر جان هربرټ، هنري واټ، بن جانسن، رابرټ هیرک، هنري واټن او انډریو مارویل وغیره دَ انګریزي ادب دَ نشاة الثانیه خاص شاعران وُو چې دَ انګریزي شعري ادب ته یې یو نوے جوش ورکړو او دَ انګریزي ژبې په تن او بدن کښې یې داسې رُوح پُوک وَ هلو چې انګریزي ژبه یې دَ نورو ژبو هم سیاله کړه.

دا هغه دور وو چې شکسپیر شان شاعر او ډرامه نویس یې پیدا کړو چې محض دَ دهٔ ذات دَدې دور دَ ترقۍ یو لوئ ثبوت دے. دَ جان ملټن ۱۶۰۸ء تا ۱۶۷۴ء لاطیني الفاظ نه ډکه شاعري دوېم غټ

مثال دے. د هغه Paradise Lost, Paradise Regained
او Ode on the morning of Christ's Nativity
او Lycidas د انګريزي شاعرۍ بې مثله نادرې نمونې
شاهپارې دي.

پښتو ادب په دې زمانه د نثري او شعري آثارو له مخې نسبتاً مور
پټ وو. البته د دې زمانې بد قسمتي وه چې پښتون سلاطينِ دهلي لکه
غوري، خلجي، سادات او لودي دې ژبې ته هيڅ اهميت ورنه کړو.
د محمد غوري سلطنت نه واخله د همايون مغل بادشاه د اولنۍ دور تر
بادشاهۍ پښتانه د برصغير پاک و هند اصلي وارثان او مالکان وو. او
که خاندان غلامان، تغلق وغيره ترک نژاد هم نو د بادشاهت په تخت
ناست وو. ولې د فوج ټول دارومدار او انحصار په پښتنو ځوانانو څخه
ترلے او پيوست وو او د تخت محافظين هم دوئ وو نو دغه واکدارانو
پښتو ته په اهلِ هند ته هم متعارف نه کړه. او د زور و شمشير په طاقت
او هنر پوهې پښتنو د دې ژبې د اثر او حکمرانۍ هيڅ احساس و نه کړو
چې د دې په وساطت يې د اهلِ هند په فکرو دماغ بادشاهي او راج
قائم کړے وے. خو د دې برعکس د برطانيه په تخت ناست بادشاهانو د
نيل عروج او کمال مصلحت د خپلې انګريزي ژبې په تنه بوده کښې منعکس
ليدو. انګريزي د سرکار حمايت او داد حاصل کړو او پښتو د عام عوام
د ليک او تحرير تر حده محدود ده به پاتې شوه او غوريانه تر سوري هيڅ يو

پښتون سلطنت دېر ژر بې ته د سرکار په نګاه او نظر و نه کتل. نتیجه دا شوه چې د انګرېزۍ او فارسۍ مقام پورته هسک شو او پښتو د ژبو په دې منډه کښې پاتې راغله -

د فارسۍ خوش قسمتي ده چې د مغل سرکار او دربار ژبه شوه او د حکومت په دا دا و موسته د عروج او کمال بام ته ورسېده.

«په ایران کښې د روحانیونو د حکومت له تعصب نه ډک چلند یو زیات شمېر شاعران مجبور کړل چې هند ته مهاجرت وکړي. د ملک الشعراء بهار په قول د دهلي دربار د اصفهان دربار نه د فارسي شعر زیات خدمت وکړ. دا د تاریخ ظرافت کاري ده چې د ایران په دربار کښې صفوي پادشاهانو او درباریانو به ترکۍ ژبه خبرې کولې او د دې په خلاف په مغل دربار کښې د ترکۍ په ځای په فارسۍ ژبه خبرې کېدې»

«د عبدالحمید مومند یاد»

«چاپ» د افغانستان د علومو اکېډمي ص ۱۲

ولې د پښتون سلاطینو د غفلت باوجود پښتو د دغه زمانې د پښتو لیکوالو او پوهانو د تحریرات ترمخه یو مکمل او جامع ژبه ده او د پښتو د شعري ادب په میدان کښې د اکبر زمینداوري، شیخ محمد صالح، میرمن رابعه، میرمن زرغونه، زرغون خان، دوست محمد کاکړ، شیخ عیسی مشواني، میرمن نیکبخته، شیخ بستان بړیڅ، الله یار الکوزي، ملا الف هوتک امیرخان، ملامست او بیا پوهان تحریرات زمونږ د زړونو ځلاند لارې

بد مثالونه دي.

د زرغون خان $\frac{1486}{891}$ تا $\frac{1515}{921}$ " ساقي نامه " د فطرت نګارۍ یو اعلی نمونه ده. چې د رومانوي شاعرۍ عکسونه یې هر شعر نه څرګندیږي وهی[له]

شعر

" ساقي ! پاسه پیاله راکړه
مرور یار مي پخلا کړه "

" پسرلی څو غنچه ګل که
زلفې تاوې د سنبل که "

" هر سري په میو مست دی
دې بهار کېنې ګل پرست دی "

" جهان ټول سور او زرغون شو
وچ راغه بسکلي ګلګون شو "

د مغل حکومت د میرزا محمد حکیم او جلال الدین محمد اکبر پسران محمد همایون په زمانه چې د پښتنو په سیمه د باطنیت او ظاهریت دوه مسلکي مذهبي تحریکو نو جنم واخیستو. نو دغه متقابل مذهبي تحریکات د پښتو ژبې د ترقۍ او کمال باعث شول. د پښتو ژبې بهترین کتابونه " خیر البیان او مخزن الاسلام " منځ ته راغلل او د بایزید انصاري او اخوند درویزه پیروکارو

---

له پټه خزانه ص۶۷

او مریدانو دَ پښتو ادب شعری میدان په خپل لیک- اشعار او افکار
سنبه تود او گرم کړو.

اوکه یو اړخ ازماني - علی محمد مخلص، مُلا عمر، مرزا خان انصاری
دولت لوحانی او واصل شان بهادر پهلوانان شاعران میدان ته راغلل، نو بل
پلوُ دَ عبدالکریم المعروف کریمداد، خالقداد، عبدالحلیم، مصطفی محمد
مُلا اصغر او رحمدادې په اشعارو دَ پښتو ادب شعری میدان سنبه تور
شو او دَدې تحریک په دام دَ پښتو ادب شعریت سنبه مضبوط او مستحکم شو
دَ روښاني تحریک دَ عقیدتمند شاعرانو وابستگی عقیدت او ارتباط
که هرڅو دَ تصوف دَوحدت الوجود مسلک څخه وو. خو دَ وحدت الوجود
(همه اوست) یا وحدت الشهود (همه از اوست) عقائد که فارسی پښتو
وغیره مشرقی ژبو کښې دَ غزل په صنفِ سخن عام شهرت او رواج لري نو
بل اړخ دَ توحید ذکر او اظهار دَ کائنات او فطرت دَعناصر او اجزاء په
رنګ کښې بیا نول یو قدرتی امر وو

درست جهان یې احاطه که — یو عجب لطیف دریاب دے
مخلوقات چې څرګند پرې ښکاري — هم دَ دې دریاب حباب دے
په کثرت کښې تار په تار رشته — اور و باد او وبه تراب دے

یا

زه چې د پړه د پړه مینه په ګلزار کړم — په هر رنګ کښې ننداره وَ دَ خپل یار کړم
کل ذره مې وَ نظر ته آئینه شوه — په هر څه کښې یو آشنا وینم څ را ته
(مرزا خان انصاری)

دکوړی مرزاخان انصاری ۱۵۸۰ء تا ۱۶۳۱ء (۹۸۸ھ ۱۰۴۰ھ) دَ وحدت او معرفت رموزو اسرار او پټ رازونه دَ فطرت په رنګ منوّر تومره په ښکلی انداز سپړی

ته یو ځل که دَ باطن ستر کې کړې رڼې
یو جمال دے لور په لور وتا ته موخه

دَ چمن ګلونه ډیر دی لوُ نه لوُ ن
دَ نرګس داغ یې په لاله باندې اعلام که

دې لاله دَ مینې داغ په نرګس راوړه
نرګس ورېځ دَ نوبهار یم پرې ورېږم

دا صد برګ دَ نرګس په وینو کښې یشبوی
دَ فراق اوښکې یې ځی نوم یې ګلاب شه

نا تمام عقل دې هسې رهبری که
چې خزان وته په مینه دَ بهار ځې

هر یو ګل نما یو څو ورځې مېلمه دے
ناڅه بلبل باندې ناری کړم توی څارېږم

عندلیب چې هسې ډیر ډیر زویاد کاندی   دَ اشنا خبری بیا موندڅه له یا غمه

که رښتیا دَ ګل په مینه بیګانه یې   دَ مرزا په آواز ولینن شه عندلیبه

اے مرزا اخبر به ګل له سبا خه بیل شی
تبرڅه خارجې همېش وی له صد برګه
دَ دولت لواڼی دا څو شعرونه هم دکوړی۔

دَ عاشق او سنګو قیمت کړ دَ ګوهر مات
په زرد مخ یې کړ د پرخه دَ نایږ زر مات

په بنه بوی یې مشک سندل ګلاب خجل کړه
په شیرین کلام یې خوند کړ دَ شکر مات

په بلند قامت یې سروه شرمنده کړه
کړ مشکین ګیسو یې قدر دَ عنبر مات

نورانی غاښو یې منتوری بې قیمت کړه
په رفتار یې کړ بازار دَ صنوبر مات

زنخدان یې دَ باغ سیب کړه بې رواجه
په نازک تن یې ښاشته کړ دَ سیمبر مات

دَ واصل دوستانی ١٥٧٣ع / ٩٨٠ه تر ١٦٢٨ع / ١٠٥٨ه په دې خوا شعارو کښې
هم دَ رومانویت رنګ ښکاری ــ

دَ لاله په رنګ یې ځای دَ شهادت وو
د نرګس په دود مې خیرې کړ کفن

که په خاک باندې مې سروه قدم کیږدی
دَ نرګس په دود به وځم له کفنه

یا د لیر عنبری زلفې په شانه کړی
یا دَ صبح نسیم راوالوت له ګلشنه

په چمن داستادَ زلفو نسیم والوت په صبا باندی خطاب دَ میخانې دی

مرغزار یې د خوانئ ننداره کړه
د خزان د لښکر کړ دیې په مخ تل شه

که د ګلو نو شبوئ شم نه مې بوئې کړه
که مېوه شم په ښاخ زانګم نه مې وُ له

د بلبل په دود له درده فریاد نه کړم
ما د یار محبت غوښتے په دعا دے

د نیسان په شبنم ویښې شه یا سمن
د پسرلی ګلونه بیا را غلل ته پاڅو شوې

دا صکل روښانی مخمس، هم د رومانوی کیفیت اعلی مظهر دے
د یو مخمس تمهید یا تشبیب یې په دې شکل دے

رنګک د طبیعت له ښئ هوسه          د دریاب له موجه دُوریه وسه
باغ بیا شه رنګ به رنګ          دچمن ګلونه رنړی پرې عسه

که هر حال یې شه بلبله فریاد رسه

## ۳: د برقراریت دور ۱۶۶۰ء نه تا ۱۷۹۸ء

۱۶۶۰ء کښې د نشاة ثانیه په خاتمه ۱۷۰۲ء پورې د انګریز
د شعری ادب د بحالیت او برقراریت Restoration Period دے
او ۱۷۰۲ء تا ۱۷۹۸ء کلاسیکی دور یاد یږی چې انګریزی شعری
ادب کښې د یو مخصوص انداز فکر لوئې تحریک وه. څکه چې د اولسمې
صدی په خاتمه د یورپ د خلقو د هنونه د پر مختګښې لاره دوئ کښې

دَتنقید مادہ پیدا شوہ. دوئ دَ خیالی او جذباتی تصوّرا تو مخالف شول. سائنس. فلسفه او منطق میدان ته راغلل او خلقو دَ دلیل ـ صحي سوچ او دَ عمل په تله هرڅهٔ تلل شروع کړل. او اختراعیات دَ ځوانئه جوش او جذبات او خیالی تخلونه جوړ ول یې پرېښودل. دَ عقل ودلیل دَ اهمیّت په سبب باقاعدګئ Method او اسلوب Manner (طرزِ بیان) خاص و قدت بیا موندو. دغه وجه وه چې دَ انګریزي شعري ادب هُم خپل اړخ بدل کړو. او س خیالی او جذباتي شاعري فضول وګڼلے شوه او دَ دې وخت شاعري

The poetry produced in this period was Lucid, elegant and smooth, but passionless, Unimaginative, often cynical, witty and satirical

ترجمه:- " دَ دې وخت شاعري واضحه پاکه او سُوچه وه. خو جذبات و تصوّرات نه خالی وه او اکثر خُشکه، دَ هوش نه ډکه او طنزیه وه "

دَ کلاسیکي دور لوئ نمائنده کسان الیګذانډر پوپ ۱۶۸۸ء تا ۱۷۴۴ء او جان ډرایډن[1] ۱۶۳۱ء تا ۱۷۰۰ء وُو چونکه دَ دې دور دَ سیکوالو دا دعوئ وه چې دوئ دَ اګسټس

---

[1] دَ جان ډرایډن دَ ۱۶۸۷ء The Song of Saint Cecilia's day مشهور نظم دے.

## Augustus شهنشاه د دور د لاطیني ادب

د ځلنده کارنامانې د لوئ کلاسیکي لیکوالو په نقش قدم روان دي. نو په دې بنا دا دور د اګسټس زمانه یا کلاسیکي دور مشهور شو. دې دور ته ځینې وخت د عقل ودلیل دور هم وائي.

د کلاسیکي شاعرۍ د دې دومره لوئې تحریک باوجود یورپ کښې داسې شاعران بیا هم موجود وو چې هغوئ د کلاسیکي شاعرۍ د دغه سبک یا مکتبهٔ فکر School of Thought څخه اتفاق نهٔ لرلو.

هغوئ د خپلې شاعرۍ بنیاد هُم لکه د پخوا د فطري شاعرۍ په اډانه برقرار وساتلو او د سپنسر د وخت پخواني ساده موضوعات یې په ځائې وساتل. کلیوال ژوند یې ښاریوال او جذبات او تصوّرات یې د فلسفې، سائنس او منطق نه غوره ګڼل. په دې شاعرانو کښې تامس ګرے سنه ۱۷۱۶ء تا سنه ۱۷۷۱ء، ولیم کولنز سنه ۱۷۲۱ء تا سنه ۱۷۵۹ء او ګولډسمتھ وغیره شامل وو. هغه چې د الیګزانډر پوپ „خاموشي ژوند" The Quiet Life هم فطرت څخه ډېر نږدې نظم دے.

تامس ګرے که هر څو د ایټالین د مناظرو او د لندن د ځینو چشمو او سرچینو بیان کوي، خو د هغهٔ دغه شاعري محض د پخوانو شاعرانو پیروي ده او د فطرت د عکاسۍ اظهار روایتي شان ښکاري. د هغهٔ د کلي د یو قبرستان مرثیه Elegy written in a Country Churchyard ډېر شهرت لري.

سنه ۱۷۷۰ء کښې کلاسیکي دور ختم شی او د انګرېزیه شعري ادب نېل
ایمرج باب لول شروع کړی دغه موده یعنی سنه ۱۷۷۰ء تا سنه ۱۷۹۸ء "رومانیت ته
اګاهو دور" یادېږي. او دې نه پس روما نوی دور ابتدا ابیا شوی
چې سنه ۱۸۳۲ء پورې قایم وه. روما نوی دور د وکټوریه دور
Victorian Period سنه ۱۷۹۸ء تا سنه ۱۹۱۴ء یو برخه ده چې
د انګرېزي شعري ادب کښې اهم مقام لري.

د اتلسمې صدۍ په اخیري نیمائي برخه کښې که څه هم رومانوی عناصر
په جرمنی[1] او انګلستان کښې ښکاره شوي وو خو رومانویت د یو منظم
تحریک حیثیت حپل کړے نه وو حقیقت دا دے چې د ولیم ورډزورتھ
او د سیموول ټیلر کالرج په کوشش چې سنه ۱۷۹۸ء کښې د لندن په مقام
د لیریکل بیلډز *Lyrical Ballads* په نوم د فطرت او
ما فوق الفطرت اشعارو کومه شعري مجموعه چاپ شوه او د دې
کتاب په دیباچه کښې د رومانویت کوم اصول مقرر شول نو دغه دیباچې
د رومانویت د فن او نظریې تعین وکړو. او دغه تصنیف د رومانویت
بنیاد وګرځېدو. ورډزورتھ او کالرج د انګرېزي ژبې د رومانویت
بنیاد ایښودونکي او رهنمایان شول.

دا هغه زمانه وه. چې د انګرېز قوم دماغ د لراس

---

[1] جرمنی کښې رومانویت د سټرم او ډرینګ سنه ۱۷۷۰-۸۰ء زمانې راسې شروع دو

د نپولین[۱] او پر دو جنګونو نه ایناد وو. نو په دې وجه دوئ د دغه شاعرانو د عوامي نه بې اثرات د پر زر قبول کړل بیا په نیږه نیږه د دې شاعرانو په شاعری کښې د غنائیت او موسیقي عنصر د پر غالب وو نو لاندې وه چې دې قسم شاعری ته د پر په تیزی سره شهرت اخیستو.

The period was a general revival of National heritage.

ترجمه: دا دور د قومي ورثې یو عمومي تجدید وو

د رومانویت نه اګاهو د اتلسمې صدی کلاسیکي ادب سنه ۱۶۶۰ تا سنه ۱۷۹۸ په روایت، قدامت او ځینې فرسوده اصول بناء وو. غیر فطری او تر ډیره حده رسمي وو، سیاسي او غیر یقیني وو. او د دې کلاسیکي ادب شاعران محض د حکومت وخت آلهٔ کار وو. هغوئ عام عوام څخه هیڅ مینه نه وه. دغه وجه وه چې د دوئ مصنوعي طرز تحریر کښې هیڅ ساه او حرکت نه وو. د دوئ شاعري یس صرف د لاطیني ژبې د ګران الفاظ ذخیره وه. د دې قسم ادب خلاف یو باقاعده تحریک، احتجاج

---

[۱] نپولین، بوناپارت سنه ۱۷۶۹ تا سنه ۱۸۲۱ د واترلو په مقام سنه ۱۸۱۵ کښې د برطانیه، جرمنی، ډچ او بلجیم اتحادی لښکرنه شکست وخوړو او نپولین سوم سنه ۱۸۰۸ تا سنه ۱۸۷۳ د بادشاهت نه سنه ۱۸۷۰ کښې معزول شو.

ردِّ عمل، او نفرت پیدا کېدل یو فطري امر وو، چې د رومانویت
په شکل کښې ظاهر شو.

دې کښې شک نشته چې د پوپ او ډرائیډن په شاعرۍ
کښې هم د شپنو او ګډو باوړ ذکر موجود دے د موسی علیه السلام
پیروکارېې د ګډو Sheep او موسی علیه السلام
یې د شپون Shephard په نوم ذکر کړے دے. خو د
عام انسان نفرت په سبب د دوئ د شاعرۍ دغه برخه د رومانویت
په نوم یاده نه شوه.

پښتو ادب دې دوران د روښنیانو صوفیانه کلام او د اخون
درویزه د مکتب د پیروکارانو په عارفانه کلام سره روښنیان وو
ولې بیا هم د پښتو شعري ادب کښې د ځینې موضوعات اصناف
او محاسن تشنګي او نیمګړتیا محسوسیده. چې د خوشحال خان خټک
عبدالرحمان بابا او عبدالحمید بابا د قومیت، تصوف او رومانویت
مکاتبِ فکر دغه کمے پوره کړو او د پښتو ادب په لمن کښې یې د
شعري اصناف رنګارنګ ګلونه، ښائسټ او رعنائیت راغونډ کړو
د پښتو شعریت کښې د فطرت نګارۍ او منظرکشۍ رواج عام شو
او د ګل و بلبل ذکر د متاخرین شعراء د کلام خاصه شوه دغه وجه
ده چې مونږ د منقدمینو شعراء په نسبت د خوشحال خان خټک په
کلام کښې د رومانوي افکارو ذکر زیات وینو.

نوبهار شو بیا نرګس په باغ مستي که     چې صباحي په سنبل د زلفو دستي که

لاله ګل به یې له باغه خوبي پورکه
په زلفینو به سنبل کاندي بې تابه
چې نرګس ته نظرنهٔ کاندې له کبره
وَ هغو ته څهٔ ګُلونه دَ شرم وُرم

ګل دَ لاله داغ لري سختي دَ رامبېل پاڼي
چاوې چې لاله دے یار امبېل دے ګلعذار ستا
ما چې ستا د ابشکلي بارخو په سترګو څېر کړهٔ
ګلِ لاله دا دی اے نه پیانګاري مستي

په چمن کښي رنګارنګ ګلونه ډېر دي
دَ ذرهٔ داغ مې دَ لاله دَ نارهٔ نصیب شهٔ
چې یې سرې ملېې په ځان کړلې قبولې
دَ سبهٔ بوئ نفس پېدا شوله ګلا به

ګل چې ستا تر لاسه درغلو تا نهٔ راشو
لاس دې که لوی اشرف دَ ګل تر ښاخه
رنګ و بوئ دې دَ خپل ځان هسې پیدا کړو
کهٔ په رنګ دَ یاسمین دے ګل دَ سپاندي

دا ګلزار دَ هیڅ ګلزار سره سم نهٔ دے
چې زلفېنې په سپین مخ راته خم خم کړې
ګل کهٔ هر څو ښاښته دے په دا باغ کښي
که یې وینې بیا اغزی لري ترخنګه

دَ ګلونو په لیدهٔ دې مخ رایاد شی
ځکه هسې په ګلګشت دَ چمن تلَ یم

دَ ګلونو په موسم کښې هغه خوار شول
چې ګلرنګه معشوقه یې ترڅنګ نهٔ وه

ګډ شم په ګلشن کښې لمن ډکه کړم دَ ګلو
بیا بې خوده لاړ شم واړه ګل راځخه تلَ شی

دَ صبا په یاد نشاط وی دَ ګلونو    که جنبش که دَ بلبل له شور و شره
دَ هر ګل ثنا صفت که په زاړه بو    په دا باغ کښې چې غوغا ده دَ بلبلو

مخ په پلوَ پټ کړې زړهٔ ورځ دَ ربا ندې شام کړې
بیا چې پلوَ واخلې په عاشق شی سپین سحره

دَ جمال خوبې دې نهٔ یا نه تورو تتاب ده
دَ نظر دَ پاره نوم دَ ربا ندې مانیدم

که څوک خپلې سترګې و ساتی غم نشته
چې په زړهٔ تندر پرېباسی خپل نظر دے

دَ خوشحال خټک ضخیم شعری مجموعه کښې نور کافی ګل
دوما نوی ۱ شعار مو بو دد ی. دَ دوی دَ (دوی) ۱ شعارو بو پوره
غزل دَ فطرت ترجمان دے. چې مطلع یې په دې ډول ده ۵

خنه به له دی بر سنهٔ وے دَ بهار دَ ګلو خندهٔ
که زر د رسیې نهٔ وے دَ خزان سیلۍ سخته

دَ خوشحال خان خټک یو قصیده دَ فطرت دَ عکاسۍ بهترینه نمونه ده. دَ دغه قصیدې اولنی شعر په دې ډول دے

چې موسم دې دَ ګلونو دَ ګلزار شي
نرم نرم ترشح په مرغزار شي

دغسې دَ خوشحال خان خټک دَ ګوړپې دَ جنګ دَ یو تاریخي قصیدې (۱۶۷۶ء / ۱۰۸۶ھ) اته رومبی دَ تشبیب اشعار دَ رومانویت اعلیٰ شاهکار دی.

بیا له کومه راپیدا شو دا بهار — چې په هر لوري یې ملک بو ګلزار

دَ خوشحال خټک زوئې عبدالقادر خان خټک (۱۶۵۲ء / ۱۰۶۳ھ تا ۱۷۲۸ء / ۱۱۴۰ھ) په کلام کښې دَ رومانویت ښکلې مستانه او لطیف اشعار په کافي تعداد موجود دی. یو څو دَ مثال په طور وګورئ

چې نکهت دَ یار دَ زلفو نسیم راوړهٔ
مشک خوشبوئي په هغه بوئې شول عنبر هم له

که ګذر زما دَ یار په کوڅه وکړې
دا پیغام پرې ساندې ووایه شمال له

چې یې واخسته پرده دَ ګل له مخه
منت بار دَ احسانونو دَ صبا یم

تن نسیم عبدالقادر ته سحر ووې
بوئې یې واخله دا ګلونه په رفتن دی

په چراغ کښې تجلّی وکه پتنګ ته — بلبلانو ته ښکاره شي په نسرین کښې

د دا ړه سترګې مې د ېا ده کې شي په خاوړو

د نرګس په دود که سترګې باغ ته وا کړم

که مو عمر د چمن تر ګلو کم دے

د لاله غوندې مې سوځو د ناره په داغ یو

ګوندې عطر یې که ښکلي په ځان پورې

هم په دا اُمید ځان وُ سو د ګلاب ګل

عبدالقادر خان خټک چې د "ګل" متعلق د شپې[26] وېشت شعرونو کړم بهاریه قصیده لیکلې ده د روما نویت یو اعلیٰ نمونه ده. د دې قصیدې مطلع او مقطع په دې ډول دي. سه

"شګفته په باغ و راغ شول د بهار ګل

هم په بام، هم په کوټه هم په دیوار ګل"

"چې نښان د خپل اشنا ور حسن مومي

ځکه یاد عبدالقادر کړه په تکرار ګل"

سکندر خان خټک بن خوشحال خان خټک د "افضل آباد" په تعریف او ستائینه چې کوم ښکلے ښائسته نظم لیکلے دے د روما نوی فکر یوه اعلیٰ نمونه ده. د دغه نظم ابتداء په دې ډول ده.

سه

که رضوان یې له نشاطه خبر دار که

دا مکان به د بهشت سره په شمار که

دَ عبدالرّحمان بابا مسلک تصوّف دے او دَ هغهٔ تو لے شاعری دَ پند و نصیحت، عشقِ حقیقت او تصوّف نه ګبره چاپېره چورلی. خو دَ هغهٔ په شاعرۍ کښې روماني رنګ هم موجود دے

ه

په آرزو دې دَ نرګس سترګې خلور شوې
غنچه سره دَ زړهٔ په وینو شوه غرقا یه

چې اول یې خار زړه رغون شي په پهلو کښې
غنچه هله شګفته شي په ګلزار

چې په خپلو وینو ګل غوندې غرق نهٔ وې
وُ به نهٔ وینې رخسار ګلفام دَ ستا

چې دَ ګلو پرېشاني شوه ورځ ګنده
غنچې سر په زانو کښېښو دخنداله که

چې نسیم یې دَ زلفینو راپیدا شي
درست مې دوب کاندې په مشکو په ګلاب

زلفې دې ناحق خاق بولي په سنبل صنم!
ولې چې له مشکو سره هیڅ دَ ګیاه کار نشته

چې صبا شي ستا ترمخ پوره شرمیږي
حکه زیست په توره شپه کاندې مهتاب

عمر و نه دي تویږي چې په حال زما خبر نړي
سینه دَ ا و نیکو درومي چې راغلې له کهساره

غوټه غوټه خوب په خاخکی او بو دروي
یار په سینه نه ماړ او ښکو به ډېر ته شو

کوه و دشت هم د خزان له غمه ربړ دی
څکه نه د که د چمن ته خرام نه که

شین لوګي مې په سر چتر دو ته تخت دے
ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم

یو بلبل به د ګل نوم اخیستی نه وو
که خبر وې چې ګل نه دے خار دے دا

چې خندا یې د بلبل په آه و سرد کړه
خدائے د ګل ګریوان پاره کړه سینه چاکه

د بهار د ګلو عمر مدام نه وی
عندلیب غوندې به پاتې په اهار شی

ستارې نه دے چې ورې له آسمانه
د مارغانو په رحمان باندې زړه شوه

ورته ورته چې د لیریکل بیلډ په دیباچه کښې ورډزورته
کوم اصول مقرر کړي دي نو د رحمان بابا په دې څوم شعرو کښې
د فطرت د عکاسي څخه سم د دوما نویت تشریح او وضاحت هم
ډېر په ښکلي انداز موجود دے

هسې رنګ نعمت را کړے خدائے و ما دے چې هیڅ خلق یې بها لسته بې بها دے

آسمان زمکه، نمو سپوږمۍ اوروښان ستوري
درست جهان چې وَ نظرته تماشا دے

شپه او ورځ دَ ماه و مهر له پړلوَه
ځ دَ زمکې راته درست نقره طلا دے

په شپه مشک، په ورځ کافور راباندې ورېږي
درست صورت مې پکښې غرق سرتر پا دے

په هر دم زندګاني بخښي وَ ما ته
هر نسیم دَ یار له لوري مسیحا دے

دَ چمن وَ سَرو ګلونو ته چې ګورم
هر هر ګل راته له ورایه په خندا دے

دَ ګلګونو میټو ناوې راته ناسته
زرنګاري قمیص اغوستے دَ مینا دے

خپلې وینې په ور غوږ کښې نیولې
هر ساغر دَ مۍ نوروشو جان فدا دے

دَ ښځ دود په غاړه ناست سرود په لاس کښې
هر مطرب لکه بلبل غونډې ګویا دے

سپین مخونه سُرې لښې دي دَ دلبرو هر دیدن یې دَ آفتاب په خبر رڼا دے
چې دا هسې معرفت یې پرې پېژندګرو
په رحمان باندې منت دَ پاک مولا دے



## ۴: رومانویت ۱۷۹۸ء تا ۱۸۳۲ء (وکتوریه دور)

رومان Romance د ژړې فرانسیسي نه بې Romanz خخه اخذ دے چې مطلب یې د عام خلقو خبرې[1] دی. رومان خخه بل تړلے ملحق لفظ رومانی Romantic دے.

سید انوارالحق پخپل پښتو اردو لغت کښې د رومان معنی داسې بیانوي[2].

" د ادب هغه برخه چې په کښې د قیصو په شکل کښې د ژوند هغه واقعات بیانولے شي چې هغه د حقیقي ژوند د عام او هره ورځه واقعاتو نه بېل خه وی، یعنی فرضي قیصې. عجیبه او حېرانوونکې قیصې. د عشق او د مینې واقعات او قیصې. رومان سره متعلق رومانی یا رومان خوښوونکے تخیل پرست خیالی او فرضي د بنا کښې وسېدونکے "

دې کښې هیڅ شک نشته چې رومان یا رومانی لیک په فرضي او عجیبه حېرانوونکې قیصه وی. چې زمونږ پښتو ادب کښې دا قسم داستانونه لکه د دبو

---

۱ انسکلو پیډیا بریټانیکا ص ۶۵۳

۲ اردو، پښتو لغت جلد دوم ص ۱۱۵۵.

ټاپان، سیف الملوک بدیع الجمال (ربل ری جمالم) الف لیلیٰ. وغیره قیصې موجود دي. چې عموماً د فارسی یا عربی ادب نه رانقل شوي دي. خو مونږ هغه ټولې قیصې یا مثنویانې چې مینه محبت یا عشقیات څخه تعلق لري او په عوامی کلیوالو ژبه یې بیان وي. لکه جلات محبوبه دبي شهي- ادم دُرخانی - یوسف خان شیربانو، موسیٰ خان ګل مکۍ، فتح خان رابیا، شیرعالم مېمونې وغیره ټول پښتنې داستانونه یا نورو ژبونه راترجمه مثنویانې لکه شیرین فرهاد، ګُل صنوبر، شاه وګدا، نیرنګ عشق، بهرام ګل اندامه، وامق عذرا، یوسف زلیخا، لیلیٰ مجنون وغیره داستانونه رومانی قیصې ګڼو.

خو مونږ رومان Romance څخه ملحق ترلے لفظ رومانویت. Romanticism د رومانیت نه بیخی مختلف اخلو رومانویت د یو تحریک نوم دے چې د اتلسمې صدۍ اخیری پیمانو کښې په یورپ کښې د کلاسیکیت خلاف شروع شو. اولکه څنګه چې هلته یورپ کښې Romanticism د Romance نه مختلف معنیٰ او مفهوم لری نو مونږ یې هم دلته پښتو ادب کښې هم انتها پوځیدا اسلوب تصور کوو. یعنی زمونږ کلاسیکی ادب هغه برخه چې قیصصی انداز لری او د مینې محبت داستان څخه تعلق لری نو دغه رومان یا رومانی قیصې دی چې عموماً ما فوق الفطرت هیئت لری خو خومره پورې چې د رومانویت تعلق دے نو دلته هم مونږ رومانویت د یو ادبی تحریک په حیث اخلو چې د یو باقاعده سبک په حیث د عبدالحمید بابا د رومانوی شاعرۍ نه ابتدا موئ.

جان رچرډسن د ډکشنري آف پرشين عربک اینډ انګلش اول جلد ص۷۸۴ "روماني" معنی سور تیتی کاغذ لیکي. په دې حقله هدایت الله نعیم لیکي:

"دا یوه قابل غور معنی ده چې د "روماني" په ریښه رڼا اچوي. دا سې ښکاري چې مونږ سره "رومان" او "روماني" ټکي د انګریزي یا لاطیني ترجمه نه ده بلکه دا د عربي د "رُمَّان"[1] نه جوړ لفظ دے چې معنی یې انار دے. او د سور پوخ او شوخ رنګ د پاره همیشه خلق د انار مثال ورکوي. خو که د مرغه پښتو لغت[2] خپل ټکي اخیستي دي او د انګریزي معنی یې ورته ښکاري ګ"

داتي خیال لرم چې یو انسان د خپل ذات، د جذبات شدت د فطرت د رنګین عکسونو په رڼا کښې محسوس کړي او محض جذبات نه مغلوب نه شي نو دغه رومانویت دے. د کومو شاعرانو په کلام کښې چې تصوف وحدت الوجود، وحدت الشهود پند ونصیحت یا قومیت د جذبات شدت څخه بیان وي نو مونږ هغوئ د صوفي یا قومي شاعر په حیث پېژنو او که د عشق ومحبت د اندروني کیفیت څخه

---

[1] فِيهِمَا فَاكِهَةٌ وَّنَخْلٌ وَّرُمَّانٌ (سورة رحمٰن)

ترجمه:- د دې تر مینځ میوې دي او کجورې او انار دي.

[2] خصوصي مقاله برائے ریډیو پاکستان پېښور ص

سحر ییکې او درد نه ډکې نغمې او اشعار د فطرت په رنګونو رنګینۍ حسن
وجمال متعلق وی. نو موږ ورته رومانوی شاعر وایو.

په انګریزۍ ژبه کښې د رومانویت Romantic
کلمه په رومبي ځل د هنري مور H. MORE (۱۶۱۴ء نه تا ۱۶۸۷ء)
تحریراتو کښې په ۱۶۵۹ء کښې ښکاره کېږي. د انګلستان نه دا لفظ
فرانس ته رسی. او د بې کچه مقبولیت اخپستو په سبب د فرانسیسی
اکیډیمی په لغت کښې په ۱۷۷۲ء کښې تحریرېږي او د کلاسیکی مصنفینو
د مقرر اصولو او اسلوب په ضد او بالمقابل مستعمل کېږي. فرانس کښې
د ډېر تا کلې شوو محتوا او خصوصیات قائمولو نه پس د رومانویت کلمه
دوباره انګلستان ته را رسی او د رومانوی تحریک خاص خصوصیات
او صفات مقررېږي.

ابتدائي دور کښې رومانویت د تصور را نو یو ترقی یافته شکل وو
چې انسان په ځینې موقعو د فطرت نه اخذ کړل او خلقو ته یې ورو راښندل
کړل. د چشمو او چینو د اوبو شان و شوکت، غرونه، ځنګلونه، د ماښام نکلا
د یونا لوستی کړ کوټکی کاشتکار جاه و جلال، د پېریانو دیوانو حیرانونکې
قیصې. د ونو بوټو کلونو او مارغانو ښائست او آوازونو د شاعر
په زړه کښې لار پیدا کړه. هغه یې راوپاروله. په دې کښې یې دلچسپی
واخسته. د هغه خوند او دلچسپی یې خلقو ته د اشعارو په ژبه بیان کړه.
او خلق یې ورځنې په مزه مزه داسې بلد او واقف کړل لکه چې د فطرت

دغه ښائسته ښکلي رنګونه د دوئ د زړه خپل آوازونه او جذبات وي. رومانویت د مادیاتي فلسفې او د ظالمانه جاګیردارانه سیاست خلاف د روحانیاتو او باطني فطري اقدارو څخه وګرزیده. دې کړیو خوا په ادب کښې د رومانویت هیئت بیا موند نو بل اړخ په سیاست کښې د فرانس د ۱۷۹۹ سنه د انقلاب او جرمنۍ کښې د مشهور فلاسفرانو کانټ ۱۷۲۴ سنه تا ۱۸۰۴ سنه او هیګل ۱۷۷۰ سنه تا ۱۸۳۱ سنه د نظریات په شکل کښې ښکاره شو.

## د انګریزي ادب د روماني تحریک اهم نکات

(۱) جذباتیت (۲) د فطرت مناظرو سره دلچسپي (۳) ماضي (تېره زمانه) څخه مینه (۴) تصوّف (۵) د داخلیت اظهار (۶) د کلاسیکي رجحاناتو او د هر رنګ قوانینو نه بغاوت (۷) کلیوال ته وند سره دلچسپي او تعلق (۸) د فطرت مناظرو کښې بې دوله بې خونده عجیبه او هیبتناکو عناصرو او مناظرو سره دلچسپي (۹) د تخیل مکمله آزادي، چې کله کله سړے بې لارے کوي هم. (۱۰) د انسان د حقوقو حمایه د پاره د مند وتړ پر وخذبه (۱۱) د ښار او روتراوند سره دلچسپي (۳) کهنه کوالفو او مظاهرو سره مینه..... چې فطرت سره تعلق لري، خو د دې خبرې خیال نه ساتل چې په دې کښې د ښکلا عنصر موجود دے او که نه؛ (۱۳) ناول نګاري کښې جذبات نګاري[1]

---

[1] پښتو ادب کښې مثل ص ۱۲ داور خان داؤد

## وضاحت

دَ دې اهم نکاتو سرسري وضاحت بالترتیب په دې ډول دَے

(۱) داعنصر دَ شیلې، کیټس، بائرن او ټېنیسن په شاعرۍ کښې ډېر نمایات دے.

(۲) دَ ورډز ورتھ شاعرۍ کښې داخصوصیت ډېر غالب دے ځکه چې دَ شاعرِ فطرت Poet of Nature په نوم مشهور دے.

(۳) داصفت دَ ټولو رومانوي شاعرانو په کلام کښې موجود دے

(۴) ورډز ورتھ دَ وحدت الوجود شاعر Pantheist یاد ېږي.

(۵) دَ ټولو رومانوي شاعرانو وصفا دے خو دَ کیټس، شیلې او ورډز ورتھ شاعرۍ کښې نسبتًا نمایات دے.

(۶) ټول رومانوي شاعران دَ کلاسیکیت دَ اُصولو مخالفا دي.

(۷) دَ ورډز ورتھ شاعرۍ کښې یې ډېره نمایانه عکاسي ده.

(۸) دې قسم شاعرۍ کښې کالرج ماهر دے او لکه څنګه چې ورډز ورتھ فطرت دَ مافوق الفطرت په انداز کښې پېش کوي نو کالرج مافوق الفطرت په فطري انداز کښې دَ پېش کولو مهارت لري.

(۹) دې قسم شاعرۍ کښې بائرن دَ ټولونه مخکښې دے ځکه چې په رومانوي ادب کښې باغي شاعر یاد ېږي.

(۱۰) داخصوصیت د تولو رومانوی شاعرانو په کلام کښې موجود دے. خو دا خصوصیت دوئ نه مخکښې د ملټن په شاعرۍ کښې هم موجود دے چا چې د پیرېس د آزادۍ په حق کښې آواز پورته کړے وو.

(۱۱) د رومانوی شاعرانو په شاعرۍ کښې خاص دے خو دوئ نه اګاهو د شکسپیئر او جان ملټن شاعرۍ هم دا قسم خصوصیت لرې.

(۱۲) دا قسم رومانوی شاعرۍ د پاره سپکې شهرت لرې هغه د پر نظمونه او اشعار په سیلۍ، طوفان، باران، اننغو وغیره لیکلی دی د هغه Ode to Autumn او Ode to West wind خاص مشهور نظمونه دی.

(۱۳) رومانوی ادب نه وړاندې د مبتهیوارنلډ په شاعرۍ کښې خاص عنصر دے.

# دُ رومانوی ادب خصوصیات

(۱) دا انګرېزي د رومانوي تحریک ډېر لوئ اهم عنصر "فطرت ته متوجه کېدل".
دې ګڼي دلچسپي لرل او فطرت پلو بېرته تګ کول دي یعنې Return to Nature
د دې تحریک دا یوه اهم نعره وه او د ورډز ورتھ شاعري د دې یو لوئې
مثال دے.

(۲) رومانوي دور د انګرېزي ادب د شاعرۍ دور دے ولې د دې
برعکس کلاسیکي ادب د نثر دور ګڼلې شي.

(۳) رومانوي ادب تخیل او جذبات څخه پېوستون لري
د کیټس La Belle Dame Sans Merci
او د کولرج Ancient Mariner ; Christabel
یا قبلہ خان شان نظمونه په تخیل او مافوق الفطرت
ماحول بناء دي چې د لرې او پس پرده ماحول نه د پرده
او پلو لرې کولو کوشش کوي. دا قسم نظمونه په کلاسیکي
ادب کښې نشته.

(۴) د رومانوي ادب اکثر نظمونه د ذهن په ځائې زړه ته
د فکر په ځائې جذباتو ته او د دلیل په ځائې تخیل ته اپیل
کوي. د دې دور نظمونو کښې براه راست د اخلاقیاتو
درس Moral Teaching څه خاص
نشته، که څه دے هم نو بالواسطه Indirect دے
یعنې خالص اخلاقي او واعظانه نظمونه نشته.

۵) دَ کلاسیکی ادب شاعرانو فطرت ځنځه هیڅ دلچسپي نه وه

دَ دوئ په نظمونوکښې دَ فطرت کومه ځنځه ذکر دے نو هغه

غیر شعوری طور دے خو دَ رومانوی شاعرانو فطرت سره

بې کچه مینه ده. وردزورتھ انګرېزئ ادب کښې دَ ټولونه

لوئ فطرت نګار شاعر دے. هغهٔ فطرت ته په خپلو

نظمونوکښې ډیر لوئ مقام ورکړے دے او دَ دې فلسفیانه

اړخ یې ښهٔ ښکاره کړے دے. دغسې کالرج، بائرن، شیلے

کیټس او والسټر سکاټ هم فطرت نګار شاعران دو. خو

دَ فطرت نګارئ په حقله دَ دوئ ترمینځ فرق دے دَ دې

ټولو شاعرانو په کلام کښې فطرت یو اهم او غوره موضوع

ده. دوئ دَ فطرت مینځ ته سرورد نه کړو او دَ فطرت

دَ کرشمو مناظرو یې خلقوته په ګوته کړل. دَ مثال په

طور دې نظمونوکښې دَ فطرت سره مینه او دَ فطرت

تفصیل او تشریح موجود ده.

Ode to Nightingale, Ode to Autumn, Christabel

Ode to West wind, The Ancient Mariner, Kubla Khan

وغیره.

۶) دَ رومانوی شاعرانو انسان ځنځه خلوص نه ډکه مینه

وه. وردزورتھ، کالرج او شیلے په خپل نظمونوکښې

انسان او انسانیت دپاره د پره تمایانه مینه جوش او جذبه لرله - ورډزورتهه ذکلی هغه ساده خلقوځ مینه او دلچسپي لرله چې فطرت سره ډیرې نږدې تعلق وو. فطرت سره دغه تړ دیکت، مینې او دلچسپۍ هغه د وجودی نظریې خاوند PANTHEIST د ګرځولو. د ورډزورته نه علاوه نور روماتوی شاعران هم انسان او انسانیت څخه په یو بل شکل خپله مینه او خوښي څرګندونه کړیده د معصوم بچي او عام خلقو څخه له نوی خیالات میدان ته راغلل د رومانوی ادب مشهور شاعر شیلي انسان د پاره د یو داسې ځلنده دور Golden Age پیشنګوئ کړیده چې په دغه دور کښې به هیڅ قسم غلامانه وی او د میني حکومت به وی. دے ددې خیالاتو اظهار په خپلو مشهورو نظمونو "د انسانو راته نیالست تحریف"

Hymn to Intellectual Beauty

او Ode to The West wind کښې کړی. شیلي

یو انقلابي او باغي شاعر دے خو دغه بغاوت څخه هغه پُر اُمید هم دے او په راتلونکي زمانه کښې د اُمید رڼا او ځلقا صفا وینی.

دغسې بائرن هم د انسان فکری ازادی سره مینه لری. هغه

په خپل یو مشهور نظم Ode to Napoleon کښې د ظلم نا ورا دنیا یا تیه مذمت کوی. البته د کیټس او سکاټ خیالات په دې موضوع مختلف دی.

(۷) رومانوی شاعران په خپل ذات او شخصیت کښې ډیر زیاته دلچسپی لری. دوئ دا سې نظمو نه لیکلی دی چې د دوئ د خپل فطرت، احساساتو او خیالاتو اظهار تری کیږی دوئ په خپل خوښې موضوعات تر دې حده رسیدلی چې کوندې د ورډزورته Westminister Bridge په شان پل هډو د دنیا کښې بل موجود نه دوا او نه کیټس د بلبل د آواز نه کوم بل مارغهٔ آواز شائسته گڼی. رومانوی شاعرانو د دنیا څیزونو ته خپل نیکلی شاندار تصوراتی او تخیلاتی رنګو نه ورکړی دی او بیا که د یو ماشوم ورته د حیرت په نظر ګوری او د غه رنګین تصویرونو کښې تا ته ګی او نو بصورتی لټوی. د رومانویت تهو شاعرانو په نظمونو کښې دا کمال ډیر غالب، واضح او څرګند دے او د دوئ د انفرادی حیثیت تعین هم دې نه په آسانه اخذ کیږی.

(۸) رومانوی شاعرانو، د ماشوم، فقیرانو، کم عقلو، کم ترخنادره دغسې مارغانو ګونو او بوټو وغیره په حقله خیالات

ښکاره کړېدي. د دوئ په مضامین Subject Matter
کښې د فطرت او انسان په حقله فراخ او ښکلې ښائسته
خیالات موجود دي.

(۹) روما نوي شاعرانو په طرزِ تحریر کښې زبردست انقلاب
راوستو. الفاظو کښې سادګي پیدا شوه. ګران مشکل مسائل
نه ځان ګوښه کول ګران شو او د ټولو نه لویه خبره داده
چې شاعرۍ کښې غنائیت او موسیقۍ ته اهم مقام حاصل شو.

## کلاسیکي او روماني ادب کښې فرق

(۱) د انګریزي ادب د اتلسمې صدۍ د کلاسیکي شاعرۍ
اسلوب او شاعرانه بند شونه مصنوعي او رسمي وو. دا
موعظانه وو او په اخلاقي درس یې زور اچولو. دا
طنزیه او هجویه وو او تعلق یې عام طور د ښار
ژوند ون څخه وو. دې ادب د جذبات په ځای ذهن
ته اپیل کولو. روماني شاعري د دې کلاسیکي شاعرۍ
برعکس وه. په نورو ټکو کښې

The Sweeping revolt against reason, Science, authority and Tradition.

ترجمه: د عقل و دلیل، سائنس، حاکمیت او روایت خلاف یو
زبردست بغاوت وو.

(۲) دَ کلاسیکی ادب مثال دَ یو مشهورې قیصې دے. چې مونږ یې بیا بیا آورو. ځکه چې دا ډېره ښائسته بیانیږي او دې کښې دَ فن ټوله خوبصورتي موجوده ده اوس دې خوبصورتۍ کښې که عجائب وغرائب بیان وي او دغه رومانوي کیفیت دے او چې څومره دغه خوبصورته بیان کښې دَ حیرت عنصر زیات وي نو دومره به دَ رومانوي کیفیت اثر هم زیات وي. او بیا په ښېره ښېره چې دغه بیان په ښکلی ښائسته الفاظو کښې وي نو دومره به د دغه بیان دومانوي اثر هم زیات وي.

(۳) کلاسیکی ادب کښې دَ ژوند دَ خوبصورتۍ بیان هم دغه هومره وي څومره خاصیت چې په دغه ښائسته څیز کښې خپله موجود وي. خو رومانوي ادب کښې دَ ژوند دَ خوبصورتۍ دَ هغه احساساتو په تلاش وي چې محض تصوراتي او خیالي خو کېدے شي، ولې اصلیت څخه یې تعلق نه وي

(۴) کلاسیکی شاعران دَ اصلی دُنیا نفی نه کوي او دَ خیالي دُنیا په تلاش کښې نه وي. دَ رومانوي شاعرانو فطرت څخه مینه دَ خپل ذات ترحده محدود وي.

(۵) کلاسیکی ادب سرے دَ ژوند په مشکلات کښې را ګخلوي خو رومانویت دَ ژوند دَ مصیبتونو نه فرار غواړي. او انسان

داسې حد ته بوتلل غواړي چې هغه ځانې سترګې کار
پرېږدي -

(۶) د اتلسمې صدۍ کلاسيکي ادب د نړۍ د مهذب کسانو
ته کېږ چا پېره چورليدو. ولې د دې برعکس د رومانوي
شاعرانو خيالات او احساسات د کليوال نه او ند د
بې تعليمه کسانو څخه تعلق لرلو يعنې يوه د ډرائنګ روم
او بله د ډرائنګ روم نه بهر شاعري وه.

(۷) کلاسيکي ادب فطرت څخه ډېر کم تعلق ساته. او که
ساتلو يې هم نو لا شعوري طور - د رومانوي ادب
تحريک فطرت ته ډېر لوټې او خاص اهميت ورکړو.

(۸) کلاسيکي شاعري تجرد افکارو Abstract Ideas
مشخص کول Personification کوي - رومانوي
شاعري کښې دې قسم طرز ته ډېره شوېده.

(۹) د کلاسيکي ادب په شاعري کښې رسمي روايتي او مضوعي
الفاظ ډېر نهايات وو. ولې د دې برعکس رومانوي
شاعرانو خپل مخصوص محاورې او الفاظ ايجاد کړيدي
ورډز ورته او کيټس په خصوصي ډول د خپلو نوو
محاورو د پاره شهرت لري.

(۱۰) د کلاسيکي ادب د شاعرانو اسلوب مصنوعي او روايتي
وو او يو مخصوص بحر او وزن Rhythm به يې

استعمالولو چې ورته يې *Heroic Couplet* وئيلو هغوئ داد شاعرۍ د پاره بهترين بحر يا وزن ګڼلو. نو د دې برعکس رومانوي شاعرانو بې شماره نوي بحور (اوزان) متعارف کړل. د رومانوي تحريک ټول شاعران د بحور (اوزان) لوئ شاعران او استاذان دي چې په خپلو نظمونو کښې يې ښه قسم بحور په ډېر اعلیٰ طريقه استعمال کړل. د دوئ نظمونه لکه د مثال په طور د کالرج *The Ancient Mariner, Christabel* يا د شيلې *Ode to The Westwind* د آهنګ او وزن په لحاظ ډېرې ښکلې نمونې دي چې ډېر نهايات غنائيت *Lyricism* لري.

*Poetic Style* دې کښې هيڅ شک نشته چې رومانوي شاعرانو (شاعرانه اسلوب) کښې ډېره نوازی او تجربه په کار راوستې ده او د اتلسمې ۱۸ صدۍ د کلاسيکيت د مخصوص طرز او اسلوب خلاف د رومانوي شاعرانو واضح رجحان د اسلوب سادګۍ ده چې د ټولو لويو رومانوي شاعرانو په اسلوب کښې موندلې شي. او ورډزورته بيخپلو تنقيدي ليکونو کښې په دې ډېر نهايات زور اچولے دے.

---

(۴)

# د انګرېزي ادب رومانوي شاعران

مونږ د انګرېزي ادب رومانوي شاعران په دوو ډلو کښې تقسیمو و. یوه ډله کښې د ورډز ورتهـ، کالرج، ساوتهي، . . سکاټ شان نوموړنه شاملوو چې ورډز ورتهـ یې نمائنده دے او دوېمه ډله د رومانوي ځوانانو، شاعرانو کښې، شېلے، بائرن او کیټس ذدي نه علاوه غوره شاعران دي او نمائنده یې شېلے دے.

د انګرېزي ادب د رومانوي شاعرانو ترمینځ د ځینې مشترک خصوصیات نه علاوه داسې خصوصیات هم شته چې مخصوص شاعرانو سره ارتباط او تعلق لري. په دې اساس مونږ دلته د څو رومانوي شاعرانو مختصر او لنډ ښه جاج اخلو

## ولیم ورډز ورتهـ

## William Wordsworth

## سنه ۱۷۷۰ء تا سنه ۱۸۵۰ء

مونږ ټول په دې پوهېږو چې د فطرت پرستۍ د شاعرۍ استاد ورډز ورتهـ اخلو چا چې په اصلي معنو کښې د رومانوي شاعرۍ ابتداء وکړه. د ورډز ورتهـ نه اګاهو کهٔ هرڅو د نشاة الثانیه

د دور ځینې شاعرانو د فطرت د ښېزونو ذکر د چا د بهادرۍ او اولوالعزمۍ د جانبازۍ په سلسله کښې کړي دے او کردار یې د تخیل په زور مافوق الفطرت کړي دے. یا د فطرت نه یې مادر خیږی کړي دی. خو مجموعی طور دوئ د فطرت شاعران نه یادیږي۔

رومانویت د یو تحریک په حېث د کلاسیکی ادب خلاف یو احتجاج او چغه وه. چې د عقل منطق سائنس او دلیل خلاف د جذباتو او احساساتو فتح وه. د عقلیت پرسته او هرڅه د منطق په تول تللو نه خلق تنګ راغلی وو ځکه هغوئ فطرت یا نیچر طرفا ته متوجه شول او د زړونو حذباتی او روحانی اړخونه، د کلیوال ژوند موضوعات او د فطرت بې رنګینی یې تحریرات غوره وګڼل. ورډز ورتهه د کلیمرو د رانغوزیدلو د بوشرهار یا د هېلوېډن ښا ښته مستو هوا ګانو ځان ته د کړه د مقناطیس را ښکلو، هغه فطرت پرست شو او د فطرت پجاری Worshipper of Nature په نوم مشهور شو لکه چې فرانسیسی لیکوال Legouis and Cazamian د انګریزی ادب تاریخ په صفحه ۱۰۱ لیکی:

"د ورډزورتهه په نزد فطرت یو داسې مکمل تاثر دے چې نورو تاثراتو نه بالا دے او ژمونږ د پوهې او ذهانت یو شان استاذ دے. فطرت ژمونږ په زړونو کښې احساسات او عقائد پیدا کوی۔ او د یو هې او لېهترۍ ه رهنمائی موکوی"

دَ ورډزورتھ عقيده په صوفيانه نظريه وحدت الوجود بنا ده۔[1]

To Wordsworth Nature appears as a formative influence superior to any other, the educator of senses and mind alike, the sower in our hearts of the deep-laid seeds of our feelings and belief. The Nature is a safe guide to wisdom and goodness. Wordsworth creed is a mystical Pantheism.

To Wordsworth دَ انګرېزي ادب دوهم نوی شاعر شيلے هم پخپل يو نظم کښې هغه ته دَ خپل عقيدت ګلونه په دې شکل پېش کوی:

Poet of Nature, thou hast wept to know
That things depart which never may return.

ترجمه: اے دَ فطرت شاعره! تا په دې ژړل چې کوم څيزونه
دې دُنيا نه لاړل نو هغه چرې هم بېرته رانغلل۔

ورډزورتھ دَ انګلستان دُ لېک ډسټرکټ Lake District، وسېدونکے وو. دَ هغهٔ په شاعرۍ دَ دغه ځائې دَ ماحول ته ورا اثر وو۔ دَ ملټن نه پس په انګرېزي شعري ادب کښې دَ ورډزورتھ لېريکل بېلډز

---

1. History of English Literature by Legouis and Cazamian P-1010

یو اهم مقام لری۔

ورډزورتھ فطرت د یو پلار، دهنا، سرپرست او استاذ په شان گڼی او د ناروغ زړه د سکون علاج یې بولی۔ هغه فطرت د لانه والنه وند لباس او شپلې یې د لانه وال نه وند حرکت گڼی۔ ورډزورتھ د فطرت په انسان ډیر اثر محسوسه وی۔ او د فطرت خوبصورتی د الله له اړخه الهام INSPIRATION گڼی۔ دغه وجه ده چې هغه فطرت د روحانیاتو په معنی اخلی۔ د تصوف د وحدت الوجود نظریې د هغه دا خو شعرونه وګورئ۔

A presence that disturbs me with the joy
of elevated thoughts, a sense sublime
of something for more deeply interfused
whose dwelling is the light of the setting Suns,
And round ocean and the living air
And the blue sky and in the mind of man
A motion and a spirit, that impels
all thinking things. Therefore, am still
A lover of the meadows and the wood,
And mountains and of all that we behold
from this green Earth,

ترجمه:- ما دَ یو داسې څیز موجودګی محسوس کړه چې زما په زړه کښې یې دَ اعلیٰ تخیلاتو دَ خوشحالۍ هیجان او ولوله پیدا کړه او دَ یو څیز اعلیٰ احساس چې هر څهٔ کښې دننه پټ پروت دے۔ دَ پرېوتونکی نمر رڼا، دَ سمندر چاپېره، تموله فضاء، شین آسمان او انسانی ذهن کښې موجود دے۔ دا یو داسې حرکت او روح دے چې دَ هر سوچ او فکر ابتداء کوی۔ په دې اساس زهٔ دَ چراګاه، ځنګلونو، غرونو او په دې شنهٔ سرسبزه زمکه چې څهٔ دی په هغه ټولو عاشق یم۔

وردزورتهٔ چې دَ وحدت الوجود په حقله دَ خپلو خیالاتو اظهار په کوم ګډوډ انداز کښې کوی۔ او د محض دَ تخیل په پوړۍ ډېر په خوارۍ خپل ځان د هغه مقام تهٔ دَ ور رسولو کوشش کوی نو دَ پښتو ادب دَ تصوف شاعر عبدالرحمان بابا ډېر آګاه هوَ وحدت تجلیات دَ کائنات په ټول خلقت کښې صفا ظاهروی او ډېر په ساده سوچه ژبه او لنډو الفاظو کښې مکمل جامع حقیقت خپل عوام ته وړاندې کوی۔[1]

---

[1] Tintern Abbey Revisited

هسې نه چې واحد ئې يې ده له عجزه
په واحد وجود بسيار دے رب نما ما
معرفت د خدائے څوګند دے په هر څه کښې
ستر ګې ونوره چې دا هومره نظر نه که

په هر څه کښې ننداره د هغه مخ کړم
چې له ډېرې پېدايښه ناپديد شه
بې پردې حُسن به نه وي چا ليدلے
که څوک وائي چې ليدلے شي تش ګمان دے

عبدالحميد بابا که هر څو لکه د عبدالرحمن بابا صوفي شاعر
نه دے خو هغه هم د فطرت په تجلّيات کښې د وحدت عکس صفا وينې

ع

ستا په ستر ګو د غفلت پردې پرتې دي
ګنه بار په مخ نيولے پلو نه دے
نورې نه لګي سپين رخسار د نګار وينم
د جهان په هر سفيد په هر سياه کښې
چې په هر در و ديوار دې پرتو لګي
هغه هسې رنګ آفتاب مبين نه يې

ورد ز ورته فطرت خپل اُستاذ او مُعلّم ګڼي او وائي :
,, فطرت او پوهه کښې نه ور تصورات د پرورش کونکي
رهنما، د ننداره او روح د حب باتو محافظ او اخلاقي

اقدار» سرپرست «فطرت» په برکت وی۔ له

In nature and the language of the sense
The anchor of my thoughts, the nurse
The guide and guardian of my heart
and soul
of all my moral being.

ورډز ورتھ فطرت د هوښیارتیا بوهې او ښه والی اُستاذ
او معلّم کنړی

One impulse from vernesal wood
may teach you more of men
of moral evil and of good
Than all the sages can

ترجمه: د سرسبز ځنګل یو محمولی نښان نندا ره به د تا د خلقو
نه نیات سبق درکړی او پوهانو نه زیات به د یا
د اخلاقیات په ښه او بد پوه کړی۔ ۲

د ورډز ورتھ خیال دے چې انسان د فطرت یوه برخه ده

---

۱ Tintern Abbey Revisited

۲

و ... وړه د الله له اړخه راغلې دی. د فطرت نه انسان ته برخه حاصله
ه وجه ده چې د هغه د نظمونو موضوعات فطرت یا نیچر څخه پیوسته
دی هغه د فطرت د اثر لاندې د خپل خیالي کم سن محبوبې ،،لوسي،،
په حقله کې شمېر نظمونه لیکلي دي. چې د فطرت د زېږ اثر بې لارې
بې کوره ځائې کېږي وسپېده

A slumber did my spirit seal
I have no human fear
She seemed a thing that could not feel
The touch of earthly years
No motion has she now no force
She neither hear nor see
Rolled round in earths divernal course
with rocks and stones and trees.

ترجمه: زما لو خوب دے چې زما روح یې ځانته راکښلو او
ما نه انساني خوف او ویره وتله. ،،لوسي،، ما ته یو داسې
څیز ښکاریده چې هغه د زمکې د وختونو نه بېخي ازاده وه
د هغې خپل انساني حرکت ختم وو. او هغې کښې د خپلو
اوریدو و قوت نه وو. بلکه هغه هم د دنیا زمکې یوه برخه
وګرځیده او لکه د غرونو ګټو ونو (تر پرو) او ونو برابر

په شان د فطرت په ګردش کښې شامله شوه"

The Lost Love "ورکه مینه" ورډز ورتهه

ده نوې نظم کښې د لوسي پحقله لیکي

She dwelt among the untrodden ways
Beside the springs of Dove
A maid whom there were none to praise
And very few to Love

--------------------

She lived unknown and few could know
when LUCY ceased to be
But she is in her grave and "Oh"
The difference to me

ترجمه :- "هغه د "دو" چینو په غاړه په یو بې لاره ځائې کښې وسیده. هغه یوه داسې جینۍ وه چې د صفت یې څوک نه وو او د ډیرو لږو کسانو ورځنه مینه وه ...... د لوسي، تر وند چې څه وخت په خمبد وو نو هغه ګمنام وسیده او ډیر کم کسانو پېژندله. خو نن هغه په قبر کښې پرته ده

---

ے Lucy's Poems

خوا قسبوس دے چې د هغې د مرګ اثر صرف په ما پریږدو
د وردزورتهـ د فطرت زیر اثر پرورش کونکې "لوسي" مجله
دومره لوئې داستان د پښتو ادب د دومانوی شاعر علی خان په
دې یو شعر کښې تومره په ښکلا راغونډه دے. سه

دائم اوس په د همزولو سره راشی
په هر ځائې ورته د لوبو کودر نیسم

وردزورتهـ فطرت بو پیغمبر او ناظر کنړی او وائی سه
"هغه بهترین او خوشحاله ځرت، چرته چې مونږ
مینه د ډیرې په آرام ورولی - او تردې چې زمونږ
انسانی جسم او زمونږ د کونوکښې د وینې حرکت
مکمل ودریږی. زمونږ بدن او ده کړې شی او
بیا مونږ په یو ژوندی روح کښې تبدیل شو او
زمونږ سترګې د فطرت تسلسل خاموش کړی
او د خوشحالۍ او ورقوت مونږ ته په هو خبرکښې
د ژوندانه اصلی حقیقت وښائی ـ سله

That serene and blessed mood,
In which the affectin gently lead us on,
Untill the breath of this corporal frame

---

ـل Tintern Abbey Revisited

And even the motion of our human blood
Almost suspended, we are laid asleep
In body, and become a living soul
While with an eye made quiet by the power
of harmony, and the deep power of joy
We see into the life of things

دوړه ورډزورتهٔ دَ فطرت دَ عکاسۍ نور دوه بېرو ښايسته نظمونو نه علاوه يو نظم دے دَ انګرېزۍ کوکو "To the Cuckoo" لکه چې دَ سنسکرت نه - چې " کوئل " نځه اخذ دے. ورډزورتهٔ وائي چه

While I am lying on the grass
Thy twofold shout I hear
From hill to hill it seems to pass,
At once far off and near,

ترجمه :- " زهٔ چې په وښو ملاست پروت يم نو ستا غبرګ آواز اورم چې يو غر نه بل غر ته تېرېږي، کله دېر لرې او کله نژدې ښي "

دبېکټي هيڅ شک نشته چې دَ ورډزورتهٔ دا نظم دَ رومانوي شاعرۍ يو اعلیٰ نمونه ده- خو زمونږ دَ پښتو ادب شاعر مياں نعيم متي زي ۱۷۶۷ء تا ۱۸۱۵ء (۱۱۸۰ھ تا ۱۲۳۰ھ) چې په کوم انداز دَ کوئل ذکر کوی نو دَ انګرېزي ادب دَ رومانوي

شاعرانو برعکس د هغه په دغه یو شعر کښې د پرلوئې نه ور لخیال موجود دے۔

د چمن په بلبلانو کښې شور کړه شو
چې نعیم د شپې فریاد لکه کوئل که

ورډز ورتهـ نهـ یوا نسې دا چې دا د ر ویښاند ریک Winander Lake په چیتوکښې د فطرت کرشمې وینې بلکه هغه د سکاټ لینډ په شمکه د سفر دوران د یو ښکلې پوازې جینۍ د فصل ریبلو په وخت د دغه ځائې ماحول کښې د فطرت کوم نښانات او آثار کوری او د دغه ښائسته جینۍ د آواز نه کوم لطف پورته کوی چې هغه یې د سندرې په شکل یه بېلچی نه پوهیږی خو هغه چې د یو لوڅکړې "Solitary Reaper" په موضوع کوم دوما نوی نظم لیکی نو د فطرت د مناظرو د رعنائیت دا قسم بیان عکاسی او جذباتی کیفیت په انګریزی ادب کښې هم د ورډز ورتهـ کمال او کلام دے۔

د دغه مشهور نظم منظومه ترجمه داور خان داؤد داسې کوی۔

یو ه جینۍ وه غرځنه ځانله بېله شهزادګۍ
په پټی کښې وه لوګړه هُم ونيله یې سندره
هر طرفته یې شور ناو دو وه ما نیولے ورته غوږ ود

یو غمژنه شان نغمه وه

الګډه کښې چېې نوره وه

سندریزه وه الګډه     سپرلی هم راوړی وه کله

په فضا کښې یو نغمه وه     د بلبل نه هم خوږه وه

دا سې غږ نه وو فطرت کښې     نارېه دا کښېونکې حقیقت کښې

خوش الحانه وه مرغونه

هم خوږه وه د خوږو نه

جنګ که امن یې مضمون وو     که څه غم یې د ناوړه ون وو

د ماضۍ څه واقعه وه     تذکره وه که قیصه وه

دا څه پېښه اوسنۍ وه     که نه هره ځوانسۍ ره

نامعلومه یې مضمون وو

خو بیا هم یې زړه راکښون وو

که هر څه وه دې وئیله     دا سندره مسلسله

که به لوټه تیښېد له     هم سندره یې وئیله

چې شوه ختمه کوم ساعت     هغه دم شوم ترې رخصت

لا یې اوره مه غږېږي

زما مینه پرې ماتېږي

پښتو ادب کښې د فطرت په مختلف موضوعات دېر

شاعرانو طبع آزمائي کړېده. د ورډز ورتهه د سالسټري

دېر په نمونه Pattern پښتو ادب کښې د رسول رسا

او په پښتانه خټک د "پښتنه کوچه"[1] په موضوع د روماني شاعرۍ
اعلیٰ مثالونه موجود دي۔

د ورډزورتھ دغه درس او نصیحت

The world is too much with us, late and soon
getting and spending, we lay waste our powers
Little we see in Nature that is ours
We have given our hearts away, a ....
Sordid boon.

ترجمه: موږ د پرزیات حاق دُنیا څخه تړلے دے. کله وخته او کله د وخته، بس اکتهو او خرخ کوو. موږ خپل قوّت بې ځایه ضائع کوو. فطرت کښې هیڅ نه لیدو و موږ خپل زړونه د یو معمولي څیزونو څخه تړلي دي۔

د پښتو ادب د شاعرۍ اصلي نچوړ دے او د پښتو هر شاعر دُنیا څخه د وېزارۍ او عشق و محبت څخه د پیوستون اعلان کوي.

## کالرج ۱۷۷۲ء نه تا ۱۸۳۴ء

د انګریزي د روماني شعري ادب دویم شاعر کالرج دے چې د ما فوق الفطرت نګارۍ Super Naturalism اُستاد او ماهر دے. دا هغه انګریزي روماني شاعر دے چې ورډز ورتھ څخه به اشتراک

---

[1] تنها کې ص۲۱.

بیا ۱۷۹۸ء کښې مشهور لیریکل بیلډز نومې کتاب چاپ کړو. د کالرج هر ډېر مشهور ما فوق الفطرت نظم The Ancient Mariner د دې کتاب نه یې و نه زینت دے. په دې نظم کښې ما فوق الفطرت عنصر نفسیاتي دے. د کالرج نه علاوه سکاټ هم ما فوق الفطرت نظمونه لیکلي دي خو د هغهٔ د ما فوق الفطرت تاریخي روماني نظمونو دومره مزه او خوند نشته چې کوم سروري کیفیت د کالرج په ما فوق الفطرت قیصصي نظمونو کښې دے. البته د کیټس څنې ما فوق الفطرت نظمونه د ستائنې وړ دي. د هغهٔ مشهور ما فوق الفطرت قیصصي نظم La Belle Dame Sans Merci د ما فوق الفطرت شاعرۍ یو اعلیٰ نمونه ده.

کالرج که هر څو ما فوق الفطرت موضوعات خوښ کړي دي. خو هغهٔ دغه موضوعات فطرتي کړي دي تاسو که د هغهٔ The ancient Mariner "د بوډا ملاح" او "قبله خان" په دقیق نظر وګورئ نو دغه نظمونو کښې د مینې محبت یو لوی درس او پند و نصیحت پروت دے.
کالرج د انګریزي ادب په تنقید نګارانو کښې وړومبنے نفسیاتي نقاد دے او په رومي ځل یې انګریزي تنقید کښې د نفسیات کلمه استعمال او متعارف کړه.

---

## جان کورډن بائرن ۱۷۸۸ء تا ۱۸۲۴ء

دَ انګرېزي دوهم نوع ادب کښې باغي شاعر بائرن دَ حُزن وملال Melancholy شاعر مشهور دے. دَ هغهٔ Child Harold نظم کښې دغه غم نیمه پوت او ښکاره دے. دَ یونانی دیو مالا Greek Mythology اثرات او کیفیت دَ دهٔ په شاعرۍ کښې ترخهٔ حده موجود دے. کوم چې دَ شیلے او کیټس په شاعرۍ کښې دِ پرستۍ ت څخه محسوسیږی.

بائرن دَ غرونو دریابونو په موضوعات کافی نظمونه لیکلی دی. هغه دَ نظرت دَ طاقتورو طاقتونو لکه سیلے. طوفان. باران وغیره په حقله خپله لیح ازمائی کړیده. او دغسې چې ورد ژ وړتیا دَ فطرت دَ بې شماره خاموشئ څخه دَ خپل تعلق اظهار کوی. نو بائرن دَ فطرت دَ بې آرامه طاقتونو نه خوشحالی او حظ حاصلوی.

دَ بائرن په شاعرۍ کښې موسیقیت او غنائیت د پر ټایات دے چې مونږ دواړه جدا شو، When we two parted دَ بائرن دَ لنډ بحر دَ نظم یو اعلیٰ نمونه ده.

Alpine, Passionate gloom, Waterloo, دَ هغهٔ She-walks in Beauty, DON Juan in England, مشهور یادګار نظمونه دی.

بائرن دَ تبرمی په بیمه دَ عیسائیت په جنونیت کښې رضاکارانه طود

شولیت نخنه د یو جنګ دوران د ترک مستمانانو د لاسه قتل شو.

## پرسی بوسشے شیلے سنه ۱۷۹۲ تا سنه ۱۸۲۲ء

## Percy Busche Shalley

د انګریزی رومانوی ادب مشهور شاعر شیلے د فطرت او انسان حُسن وجمال سره ډیر جذباتی مینه لری د ده یو نظم A Hymn to Beauty ډیر مشهور دے. د ده په شاعری کښې حسیاتی Sensuous حُسن وښائست سره هم ډیره زیاته مینه موجود ده. د شیلے په کلام کښې په دې خفله ډیرې زیاتې حوالې References او اشارې نشته دے. ده په خپله شاعری کښې مابعد الطبیعات Metaphysical او مافوق الفطرت Supernatural افکار په تخیلاتی انداز راتنه کړل. دغه وجه ده چې د خپلې اشعارو په وجه خینې خلق دے دهریه او خینې خلق یې مذهبی شاعر ګنړی.

An Eagle, A serpent, A wreck, A Sunrise او Skylark د ده مشهور نظمونه دی.

Ode to The West Wind د انقلاب او بغاوت نه ډک نظم دے خو دې نظم کښې د اُمید طمع هم موجوده ده

The trumpet of Prophecy! O Wind

If winter comes, can spring be far behind.

ترجمه: اے هوا ته دَ دے پښتو کوټی یی بچی ژمی راتلے شی نو سپرلے هم لری نه وی "

"Stanzas written in Dejection Near Naples" شیلے په یو نظم کښې د فطرت عکاسی په دے انداز کوی

The Sun is warm, The sky is clear
The waves are dancing fast and bright
Blue Isles and snowy mountains wear
The purple moon's transparent might
The breath of the moist earth is light.

ترجمه، نمر گرم او اسمان صفا دے د اوبو چپې تیزې او رڼې دی. تکې شنې جزیرې او واورو نه ډک غرونه د اودی ارغوانی رنګې سپوږمۍ صفا واضح طاقت او شکل اختیار کړی دی او لوند زمکه ساه اخلی "

شیلے په دې نظم کښې وائی.

I love snow and all the forms
of the radiant frost;
I love waves and winds and storms
Everything almost
Which is Nature's and may be

Untainted by man's misery

ترجمه:- "زه د واورو څخه مینه لرم او هغه ټولو څیزونو څخه
چې ډېر روښان، څک او منجمد وي. زما مینه پېیو، هوګانو
او طوفانونو څخه ده. او تقریبًا هر هغه ټولو څیزونو څخه
چې فطرت څخه مربوط وي او د انسان د غم او تکلیف نه
بې داغه وي."

شیلې د فطرت هر څیز کښې یو شان روح محسوسوي. هغه فطرت
ته روحاني څوبو په حیث ښکاره کوي او انساني ژوند د مثال په طور پېښ
کوي. هغه مینه یو داسې آله او ذریعه ګڼي چې د دې په وساطت
"ښه" راپیدا کیږي. د شیلې په شاعرۍ کښې د ډېر نهایات غنائیت دے
موږ که د ده شاعرۍ ته د خوشحالۍ سندرې ووایو نو بې ځایه به نه وي

"He remains above all, a lyric poet, The greatest that England or perhaps modern Europe has produced" History of English Literature by L R C. P-1058

د شیلې سکائي لارک "توریاني" SKy Lark. د جنت نه راکوز
شوے یو داسې فاني مارغه دے چې د زمکې دُنیا څخه یې هیڅ تعلق
نشته. په دې نظم کښې لکه د کیټس د Ode To Nightingale دا
کوشش شوے دے چې انسان د مادي دنیا نه مثالي او روحاني دنیا ته
ورسوي.

Better Than all measures
of delightful Sound
Better Than all treasures
That in Books are found

ترجمه:- دَ خوشحالئ سندرو او دَ کتابونو علوم نه زیاتي دَ وار وقت او دَ پرنیات دے۔

شیلے دَ نورو رومانوی شاعرانو په شان دَ دریاب او سمندر په نیاښت مینی شاعر وو۔ دَ هغهٔ په شاعرئ کښې دَ پرخا یه په دې موضوع دَ مینې اظهار موجود دے۔ دَ خدائ قدرت کورئ چې دغه محبت او دریاب خو عقیدت دَ هغهٔ دَ مرګ باعث وګرزیدو او هغه دَ سپیزیه Spezzia دَ سفر دوران دَ کښتئ دَ ډوبیدو په وجه مړ شو۔

---

## جان کیټس John Keats

سنه ۱۷۹۵ تا سنه ۱۸۲۱

دَ انګریزي ادب دَ رومانوی شاعرانو په ډله کښې کیټس حُسن پرست شاعر یاد بړی۔ حُسن دَ فطرت یو خاص رومانوی صفت خاصیت دے او دَ کیټس په شاعرئ کښې جمالیات خاص حلقه او رنړالری۔ دَ حُسن په تعاریف دَ هغهٔ ځینې اقوال دَ مِتَل حیثیت لری۔ لکه

حُسن صداقت دے او صداقت حُسن ...... Beauty is Truth,

truth Beauty .... یا ښائسته خیز همیشه دپاره د

خوشحالۍ سبب وی A Thing of Beauty, is a joy for ever.

هغه نه بوا تمامې ښائسته خیز حُسن کښې نیکي هغه مرګ هم ښائست

کښې چې د ستړیا ستومانه تماوند د اختتام باعث ګرځی دغسې

خوبصورته په کومه چې موسم د خزان هغه کښې Ode to Autumn

بیانه وی او خزان کښې کومه خوبصورتی ویښتی نو دا د داد ورخېږ ده

هغه په دغه موسم کښې پخې میوې او ښائسته کلونو باندې د نورو ځو

بهېدل او دغه نه شات بیا ربدل په ډېر ښکلی انداز بیانوی.

د کیټس په شاعرۍ کښې د یونانی دیومالا

Greek Mythology عنصر ډېر اثرات غالب دے

او یونانی دیومالا قیصو کښې هغه حواسی Sensuous حُسن و ښائست

سره خاص دلچسپي لری. په دې حقله یې ډېر نظمونه لیکلی دی لکه

Endymion د یو ښکلی هلک قیصه ده چې ښځه په خمار او ده وه

"ډمینې ښاپېرۍ" (د پوی) راځی او د خوب حالت کښې دے ښکلوی.

د کیټس La Belle Dame Sans Merci و Ode to Nightingale

وغیره یادګاری نظمونه دی. د ده په شاعرۍ کښې حُزن و ملال

Melancholy ډېر اثرات دے او شاعرۍ کښې یې حسّی

Sensuous اثر هم ښه خرګند مقام لری. او د خوبصورتۍ او جـ

نه دَحسيّات په وساطت مزه اخستل غواړي ے

I see a lily on Thy brow
with anguish moist and fever dew,
And on Thy cheeks a fading rose
Fast withereth too.

ترجمه:- ته ځه ستا په تندي بيقراره مضطرب پرخه شان خوله دَ سپين سوسن ګل هسې وينم او ستا په انګو دَرژيدونکي مړسپين ګل اثار ګورم.

دې کيتې شک نشته چې کيټس دَا نګريزي ژبې حسن پرست شاعر ياديږي. خو دَ پښتو ژبې عبدالحميد بابا دَکلام محور او مرکزيت هم "حسن" دے. حسن ولطافت، فطري رنګيني، کائناتي حسن او دَقدرتي حسن وجمال لانه وال نظارې او درشن دَعبدالحميد بابا په کلام کښې مخصوص او ډير زور اثر لري. هغه هم لکه دَکيټس حسن صداقت ګڼي. او دَ مينې هنګامه "حسن" څخه مربوط حسابوي ے

هنګامه دَ مينې ګرمه ده تر حسنه
دَ مجنون دَ درګدا شه ليلي مه شه

# د رومانوي ادب انتقادي اړخ

د انګرېزي ادب د رومانوي شاعرانو په شاعرۍ بو غټ عام اعتراض دا دے چې د دوئ کلام ابدي او افاقي عناصرو حامل نۀ دے.

میتهیو ارنلډ Mathew ARNOLD د یو فن پارې د پاره وحدت ترتیب Unity of Structure لازمي ګڼي. هغه په رومانوي شاعرانو اعتراض لري چې د دوئ په کلام کښې اعتدال، توازن او افاقیت نشته. بلکه دوئ د جزئیات داخلیت پسند وو او تخیل ذات د جزئیات نور اچوي.

ایلیټ ELiot د ورډز ورتهه په نظریهٔ شعر سخت اعتراض کوي او وائي چې شاعري د جذباتو د اظهار نه بلکې د جذباتو نه د فرار او تښتې نوم دے، دا د ذات اظهار هم نۀ دے بلکې د ذات نه د فرار کوشش دے شاعرۍ کښې اعتدال. توازن او انتقادي شعور ډېر ضروري دے تخلیقي عمل کښې چې نوګړ برخه د وجدان وي دومره د انتقادي شعور هم وي (روایت او انفرادي صلاحیت نی. ایس. ایلیټ)

ابرکرومبي Abbercoombie وائي چې رومانویت د بنیاد خارجي تجربو نه تښتنه کول. فرار حاصلول او د خپل ذات په اندروني تجربو کښې پناه اخستل دي. خو ځینې نقادانو په دې نظریه ډېر سخت تنقید کړے دے. دوئ وائي چې رومانویت په هر فن کښې ذکر شوي دواړو تجربو سره ډېر نږدې تعلق لري. په دې حقله د رومانوي شاعرانو ډېر

مثالونه ورکولے شی.

رومانویت دَ آرټ یو عنصر دے. داادب یا فن کښې دَ حقیقت پسندئ په شان دَ نورو عناصرو غوندې یا دے. حقیقي شاعر دَ رومانوی او کلاسیکی دواړو عناصرو دَ یو ځائ کولو نه په وجود کښې راځی. ذکر شوی دواړه رجحانات دَ یو بل تکمیل کوی. کهٔ دا دواړه په صحی او مکمل تناسب سره یو ځائ کړے شی نو دا امتزاج او ارتباط به یو دیر اعلیٰ تخلیقی آرټ وڼه پیدا وی.

---

## (۵)

## عبد الحمید بابا او رومانویت

رومانویت Romanticism دَ یورپ اختراع او لفظ دے چې مونږ تری "رومانویت" جوړ کړے دے. پښتو ادب کښې رومانویت دَ نوم او موضوع په لحاظ خو نوے دے ولې حقیقت کښې دَ رومانویت روح او تعریف دَ پښتو کلاسیکی شاعری کښې اګاهونه نه مونږ دَ حیثي شاعرانو په کلام کښې په څهٔ نا څهٔ شکل موجود وو. دَ خوشحال خان خټک په شاعری کښې دَ غه رنګ او فن نهایت محسوس یږی. خود عبد الحمید بابا کلام من حیث المجموعی دَ رومانویت یو باقاعده سبک دے. دَ هغهٔ په

شعري کښې د فطرت عکاسي ډېره په شدت شخه ده او پښتو ادب کښې
د رنګ و بو شاعر" او د دې مکتبه فکر امام ګڼلې شي.
عبدالحمید بابا د شاه وګدا د ترجمې په وخت کښې یو خوا د ظاهره وا
چې پښتو شعري ادب کښې د فارسي ژبې د سعدي، نظامي، فردوسي او
جامي برابر څوک پیدا نه شول نو بل اړخ ته خه د د غه شاعرانو د شاعرۍ
خصوصیات پخپله شاعرۍ کښې قارئینو ولوستونکو ته په ګوته کوي
او په یو ښکلي انداز ځان فطرت نګار شاعر بولی. سه

چې بازي په تېږه تېغ که د خېرې
و بسکي ډېرو پښتنو خپلې د برې
یو حریف پکښې پیدا او د میدان لشو
یو ظریف پکښې پیدا سخندان نشو
چې هم چشم د سعدي د نظامي شي
یا هم جام د فردوسي او د جامي شي
یوه ګوټې د ګفتګو نه دې اخستې
ګفتګو د رنګ و بو نه دې اخستې
نه یې کړې په پښتو نوې نغمه ده
نه یې ایښې په فارسي ژبه نغمه ده
لکه ورو کې په ګنجګو هوسېږي
نادیده په لرګه چار غره موسېږي

کهٔ په شعرکښې دَ ځينې يول بالا دے
نه دولت دَ فارسي شعر دَ غلا دے
لکه عام يې دَ عوام دَ مال غلهٔ دی
خاص يې هسې دَ خواصو دَ قال غلهٔ دی
زمونږ. دَ رنګ وبو دغه شاعريو يل ځائې دَ نظامي او جامي
شاعري تحريف په دې طول کوي: له
بل سره نشته دا رنګ دُ دِ ګرامي
مګر يافت شي په دوکان دَ نظامي
کهٔ خوک غواړي دا شراب حيرت انجام
مونده کيږي دَ جامي په نسکلي جام
دَ عبدالحميد بابا دَ دغه بيان په حمايت زمونږ دَ پښتو ادب نامتو
خيال شاعر علي خان خيل اشعار دَ فارسي ادب دَ "جامي" په پيروي
اقتداء او رنګ رنګين کړي. لکه چې وائي: له
دَ جنت دَ باغ قمري دے کهٔ شيرين زبان طوطي دے
يا بلبل سبلاني دے کهٔ جامي دے دپرِ شيدا دا
زهٔ پيرو محتدي يم هم تابع دَ صاف جامي يم
په دا دواړو پسې ماده ځکه کړې اقتدا دَ ده

---

له نيرنګ عشق - عبدالحميد بابا. چاپ پښتو ټولنه ص ۲۱۱

علی خان چې په پښتو کړه — د حاجي صاحب پښتونه

کډ یا شکلیو حاجي ونیکي — نو یا اغوندي ئې بیا دا

د عبدالحمید بابا په کلام کښې د فکر او چتوالے باریک بیني

مضمون آفریني او عقل نه پوره ته د خیال او تخیل پروا نه

عشقي احساسات، منظر کشي، او فطرت نګاري د درو مانویت

شائسته شکلي رنګونه او تصویرونه دي. د موضوع سادګي

موزونه الفاظ، خارجي حسیات او داخلي کیفیت د فطرت یا

پنجره په زړه کښې بیلے نوٌل د عبدالحمید بابا د کلام خاصه ده

دغه وجه ده چې کاظم خان شیدا د عبدالرحمن بابا او عبدالحمید

بابا د کلام نه زښت نهایت متاثر ښکاري او د خپل عقیدت ګلونه

ورته په دې ډول پیش کوي — په

چې موښ دو تیل و قال کړو — یعني دوئ سحر حلال کړو

خوبي سطر د انشاء وي — په دا سکر اثر د ها وي

یو بل ځائې وائي — ــه

د باکرام خطه د ګلشنه — د بهار د خاطر خوشه

دا د روه قطعه تمامه — کله رسی تر باکرامه

سرتر پایه رنګ امیز دی — رنګینه خیال انګیز دی

په بهار کښې یې د ګلو — نغرې او ورم د بلبلو

بلبلان یې خوش تقریر دي

د طوطیانو هم صفیر دي

پښتو ادب کښې عبدالحمید بابا د باریک بین، موشگاف او نازک خیال شاعر په نوم شهرت لري. او متأخرین شعراء او ادبي نقاد یې د پښتو شعري ادب بیدل گڼي لکه چې مولوي صالح محمد هوتک سنه ۱۸۹۰ تا سنه ۱۹۶۰ وائي ؎

لکه حافظ غوندي رحمان لرو نه
لکه بیدل د حمید دیوان لرو نه

مرزا عبدالقادر بیدل سنه ۱۶۴۴ تا سنه ۱۷۲۳ د فارسي ادب نازک خیال موشگاف شاعر یاد یږي. ځکه چې د تصوف په میدان کښې د الله تعالیٰ د وحدانیت او یکانګت په وضاحت د تشبیهات، کنایات، استعارات، باریکیو او نزاکت، نورو تل نه کوزښو او ښکلې تراشلي مرغلرې یې را بهر کړې او د بیو ذاتي طرز بیان موجد وگرځیدو. محیط اعظم، عرفان، طلسم حیرت او طور معرفت د هغه مشهور مثنوي تصانیف دي. د رباعیات تعداد یې په زرگونو دے او د غزلیات دیولوئي دیوان خاوند دے ؎

بمردن از رنگ و بو طرح بهار حیرتے دارم
دماغ می کشم در خون، گل تحقیق می بویم
تصور جوهر آگاهی قدرت عجب وارد
بهار فضل انسوی تعقل رنگ ها دارد
هر که دو قدم خرام می کاشت
از ناگشتن عصا بکف واشت

دَ ناقص راتګ اظهار لوم چې موشګافي، باریک بیني او نزاکت و لطافت دَ شعرو شاعرۍ دَ فن او تکنیک جزئیات او اصناف دي. دَ تشبیهات کنایات، استعارات او صنائع بدائع په وساطت شاعر دَ خپل ذاتي مقصد پیغام او خبر په دقیق، عمیق او رنګین طرز بیانوي. دَ یو مکتبهٔ فکر یا School of thought څخه یې څهٔ پیوستون او ربط نهٔ وي بلکه محض شاعرانه محاسن او خوبي وي چې دَ هر شاعر په کلام کښې دغه فنکارانه صلاحیت کم و زیات موجود وي.

دَ مرزا عبدالقادر بیدل او عبدالحمید بابا په شاعرۍ کښې دغه شعري صنعت او وصف دَ کمال ترحده موجود دے ځکه دغه دواړه هم عصر شاعران ,, موشګاف ،، یادیږي. دَ مکتبهٔ فکر په لحاظ عبدالقادر بیدل دَ تصوف او عبدالحمید بابا که موږ روماني شاعر یاد کړو نو بې ځایه به نهٔ وي. او لکه څنګه چې خوشحال خان خټک دَ قومیت او عبدالرحمان بابا دَ تصوف دَ مکتبهٔ فکر رهنما شاعران دي نو عبدالحمید بابا دَ روماني فکارو او فطرت نګارۍ په اساس دَ رومانویت شاعر دے.

دَ مرزا عبدالقادر بیدل دَ پیچیده مضامینو او فلسفیانه صوفیانه سوچ و فکر برعکس دَ عبدالحمید بابا کلام په صفا سوجه الفاظ دَ روماني تخیلاتو په رنګ رنګین دَ حسن و عشق بیان دے چې دَ فطرت نګارۍ، مصورۍ او منظرکشۍ یو اعلیٰ مرقع ده.

دَ رنګ و بو شاعر عبدالحمید بابا جدت پسند، بحر بیکران، حکیم تفکر

اوډ تخیّل د پروازه شاهین دے۔ د فطرت عکسونه او تصویرونه په نوی تراکیب او طرزِ بیانول او د محبوب د ښائست امثال د فطرت او کائنات په کارخانه کښې تلاش او لټون د حمید بابا کار او شیوه ده۔ راځئ چې د هغه د رومانوی شاعرۍ یو سرسری جاج واخلو۔

د فطرت د ښائست یو لوی عنصر ګل وشبنم دے۔ عبدالحمید بابا د ګل وشبنم ذکر په خپله شاعرۍ کښې په ډېرو موقعو کړے دے څنګه چې د خپل محبوب مخ یې ګل غنچه مشابه کړے دے۔ مونږ دلته په دې موضوع د هغه د کړې شمېر شعرونه خوږ مثال په طور راخلو۔

چې یې ګل داسناد مخ په رخسار ولید
شګوفه د زړه په وینو کښې غرقاب شوه

ماوې عبث کنه ګل دے د غنچې په لمن نغښتے
که مې کوت یو ګل اندام وو پروت په سرو وښالو کښې

بیا یې نه مونده خندا د ګلرخانو
که شبنم غونډې حمید کړه په نارا عشق

خو شبنم غونډې شو کېږ په سروانخلی
په جوار به د ګلرخ نه شی قریب څوک

هر چې خوب لکه غنچه کړی په طلب د ګل ندامو
په پېغور د هغو سترګې شبنم وکاږی په توک

سرې شوندې یې زیب هسې پیدا په تبسم که
عین لکه غنچه چې پاڼې وسپړي د ګل

د ګلرخو د دستار په تمنا کښې
لکه ګل په وینو سور دے زما دل

چې بوسه غواړي له مخه د ګلرخو
د شبنم غوندې ګریان دے نه دے ګرم

شګوفې شګفتګي په شبنم راوړه
که مې سترګو په ژړا کښې اماس وینو

د ګلرخو په نظر که قبول نه شي
مګو سپک شي په عزت لکه ګیاه

چې یې نه وینې وفا په رنګ و بوئ کښې
زر که څکه مینه نه کړي د ګلزار ته

د غنچې په څیر مې زلیت په ځیګر خون دے
که هر خوبي یې لکه ګل له ما یکتا

چې مې خیال شته د ګلرخو په لمه کښې
ګل ته نه دي مناسب کتل زما

وګلښتي له شرمه بوئ د ګلو له ګلزاره
باد چې پکښې توئ په صحدم کړې بوئ د ستا

لکه ګل چې د شبنم په ژړا خاندي
هسې رنګه مې ووه که په واڼه دوست

چې دا خپل ځيرې ګريوان پرې نه تولېږي
دَشبنم په ژړا ګُل کړي خندا پُوچه

لکه ګُل دَ ګُلرخانو وَ دستار ته
سُور په سرو وينو سالُو شو زما رُوح

په ژړا مې هسې خور په خندا لاړ شي
لکه پاڼې دَ ګُل ماتې کړي باران شوخ

پرېکړُو ته يې سرټيټ دَ ګلو ښاخ که
چې دَ باغ په کناره شي دلرُبا ګله

ړنګوي هسې ياران دَحسيد فکر؛
لکه باد دَ ګُلو ښاخ کړي په نخا ګله

دَ فطرت اهم عُنصر "ګل" دَ انګرېزي ادب هرشاعر دَخپل جمالياتي ذوق مطابق ستائيلے او يادکړے دے او دُ رومانوي شاعرانو دُشاعرۍ خاص موضوع ده۔ ورډزورتھ يو ځائې کښې ګُل داسې ياده وي؛

*To me the meanest flower that blows can give,*
*Thoughts that do often be too deep for tears.*

ترجمه: ما دَپاره يو معمولي ګُل هم چې ځان وُسپړي،
داسې ډُوب سوچ او فکر راکړي چې زما دَ ژړا باعث شي.

دَپښتو ادب رومانوي شاعرۍ کښې دَګل وشبنم تړون نه علاوه

دګل وبلبل سره پیوستون او تعلق لکه دنورو مشرقي ژبو په شان عام مروج دے. دکیتس Ode to Nightingale نه ډیرا ګاهو زمونږ په ادب کښي د بلبل آواز او ذکر تحریر او موجود دے دلته مونږ د "عندلیب خوش نوا" په حقله د عبدالحمید بابا د یو څو اشعارو په ذکر اکتفا کوو.

دا دا غلي نارې لا هم ده شمخه شان چپ
د چمن په ګلو نه دي بلبلان چپ
د بلبلو نارې نسي نه دي په ګلو
چي په سرو لمبو کښي سوزي پتنګان چپ
د بلبلو نارې نه اوري په باغ کښي
څکه خاندي په قهقهه کبک دري

دا انګریزي ادب رومانوي شاعرانو د فطرت په ځینې داسې مظاهرو هم شاعري کړې ده چي هغې کښې د ښکلا عنصر موجود نه دے. لکه د شیلے Ode to West wind یا د طوفان او سیلي نه علاوه د خزان او انا غو وغیره ذکر. پښتو ادب کښې هم دغه قسم لا تعداد اشعار موجود دي. لکه د ګل وبلبل د ذکر په لړ کښې دا دوه شعرونه هم وګورئ؛

چي پتنګ په اور کښي غوړ نکوي حمیده؛
عندلیب کاندي په ګلو نارې پوچه
څوک دي، نه غندي نو خط ښکلي حمید ته
قبول کړي دا دي اغزي بلبل نارما

یا رب الٰهی! د محبت سوځنده وګړو ته زړه را
په دا ادر ګډي د ستي سمند رساړه را
لکه سر د شمع په اور غاښونه سپینی که
مالمه تن له ده پره غمه خندا راغله

عبدالحمید بابا د "خزان" د کوچي په کوم انداز کوی او د بهار په موسم د ښاسته غوړیدلو ګلونو د ریدو سبب ګوزی، ګوری که د انګریزي رومانوي شاعرۍ په تن بدن کښي د غه قسم کیفیت او تاثر موجود وی.

دا نو په ګورېږو کښي د آسمان دے
منفرد چي په بهار لیسي خزان دے

خو چي درست د باغ ګلونه رنګ و بوی که
بیا یي نوي یاد خزان په رنګ و بوی که

چي خزان لکه مزرے په ستوبړ راغے
د بهار سبزه سبکو په ګوبړ راغے

په دیار د نوبهار شوه وباګډه — د چمن ګلونو لاس کښیښو په ګډه

په هزار ژبي ګویا سوسن خموش شه
یکهان د کوچ له مخه پوشاپوش شه

---

۱ شاه و ګدا - حمیش خلیل ص ۱۲۹

له ښکاره پښتې پښتې د ګل ځنې شه
ښېې کوټ په دا سبب د بلبل ځنې شه

د چمن په تن جامه شوه رنجې رنجې
د ګل ځنې شه له دې غمه ګُنجې ګُنجې

له چمنه د چمن اهل ولاړ شه
چې ولاړ پا به رکاب وو اخېر لاړ شه

د خزان په موسم لتاړ بهارستان شه
ګلستان د جهان واړه خارستان شه

د هر ښاخ له سره پرېوت د ګل تاج
تاج و تخت شو د چمن تاخت و تاراج

خندېدو خار شه جلوه ګر په ځای د ګلو
تورو زاغو مسند ونیو د بلبلو

په ژړا چې د بلبلو ګل خندل
نو ځنده یې تر هغه زیات وژړل

چې یې کړې په بلبلو وې څه چارې
یو په سل شوې د ګلو ته دو چارې

چې غرور یې په نابود حسن د بود شي
دا بې دوده او ریې نه زبې اوره دود شي

هیڅ یو ګل دې په خپل حسن مغرور نه شي
د هیچا به چا ته پاتې قصور نه شي

چې یې زن په حمید اشنا مائي صنم
دغه نادر به شي سیا در خخه ژرم

دَ فطرت دَ رنګ وبُوا هم عنصر ،،ګل،، نه وروستو موږ دَ ګل
خوشبو نو، نرګس، سُنبل او سوسن ــ Lily ذکر ته راځو ـ چې
دَ پښتو ادب په شاعرۍ کښې لکه دَ نورو مشرقي ژبو خصوصي مقام لري
ورته زر ورته دَ نرګس ــ Daffodil په ګل یو لوئي نظم لیکلے دے
دَ دغه نظم آخري شعر په دې ډول دے

And Then my heart with pleasure fills
And dances with The daffodils

ترجمه :. زما زړه دَ خوشحالۍ نه ډک شو او دَ نرګس ګلونو
څخه په ګډا سر شو.

دَ پښتو ادب دَ رومانوی شاعر عبدالحمید بابا په دې موضوع
دَ خیالات اظهار یو منفرد حیثیت لري

چې نظر یې دَ ګلرخ ساقي په مخ شو
دَ نرګس له لاسه واوښته پیاله

دَ نرګس په څېر له مخه دَ ګلرخو
سترګې کوزې کړم له شرمه سرنګون شم

چې نظر یې دَ ګلرخ ساقي په مخ شو
دَ نرګس دَ لاسه جام پرېوت نسکور شو

غنچه ګُله چې په څېرو راته واکړي
د نرګس په څېر کوز ګورم شرمسار شم

د نرګس تر ګُله زه یم څو چند ان شوخ
چې په غټو سترګو ګورم ګلرخان شوخ

سل ګله که قصد وکړي نرګس په شوخو سترګو
هیڅ په هسکو سترګو کتے نه شي ردئ د ستا ...

که هر څو شو پېچ و تاب له ډېره رشکه
ستا د زلفو په څېر نه شو د سنبل رنګ

مخ دې کړل ګلګون ته شرمنده زلفو سنبل
درومي ستا په لوري له باغ الوزي بلبل

چې حاضر په عدالت شو ستا د حُسن
ګونګه زه په د سوسن په سوال جواب شوه

د حمید بابا په کلام کښې د فطرت د ځینې نورو ښکلو عناصرو
لکه سرو صنوبر، چامبېل، سپېلنۍ وغیره ذکر هم په کافي تعداد
موجود دے. خوشال لونه یې وګورئ

سروې صنوبر کړه ځه له لوېټې لاس په ځوړ و
قد چې یې د زاړه په سترګو و لید لوئې د ستا

انتظار یې د نرګس ګو نه کړه زیره
سروې سرپسې له باغه باېږ ونو وکښېږ

که مې قد د سروې قد راشي په خوا کښې
د چامبېل په دود به سل ځله نرې ځار شم

کهٔ به غواړي ملاقات دَ سروي قدو
دَ چامبېل په څېر سر کوږ ے شه کمين

نهٔ خوښنا له سروي قد له برخوردار شم
کهٔ هر څو سرو هٔ بيلے شي بې بره!

دا نا ما دَ سروي قد، دَ قد له شرمه
فلک و درېدهٔ سر کوږ ے خميده

هسې زهٔ په خَم قامت له تا ځار يږم
لکه څانګه دَ چامبېل تر صنو بره

چې يې شونډې تبسم تا نهٔ انکار که
باندې زهٔ لکه سپند سوځو ته تيار شم

سپېلنې څوندې په اود دَ نو خط حُسن
سر تر پايه سره لمبه شم شنه لوخړه

دَ عبدالحميد بابا په شاعرۍ کښې دَ بلبل نه علاوه دَ ځينې نورو
مارغانو ذکر هم راځي. دلته يې دا شعرونه وګورئ

څهٔ ښادي به کبوتر نا مادَ نارهٔ که
چې کښېوتے په لاس بانا يې دَ رقيب

ځکه شوهٔ ترانګانهٔ په وينو ړوبه    چې يې زړکه سمېد له په يانهٔ
دا په خيال دَ سروي قدو به نعره وسره حميد شو
کهٔ قمري به په سر دَ سروي فرياد وته که په کوک

دَ عبدالحمید بابا په کلام کښې دَ فطرت دَ یو بل اُهم عُنصر نسیم یا باد یا صبا (دَ سحر نیمه هوا) رومانوی کیفیت اظهار خوځایه درج موجود دے

هغه گل نه شوخ کاته بې اَدبي ده
چې له سهمه دَ نسیم پرې پاګُذر نهٔ شي

چې نسیم دَ ګُلرخ لاس په ګریوانهٔ که
شرمنده دَ ګُلو بوئې پاځي له باغه

چې مې یار له تو به وینی نکړې نسیمه!
ګوره الونه په ورو په تلطّف

دَ ګلرخو پا بو سې پر ښودے نهٔ شم
کهٔ راکښې لکه نسیم په خندو خارشم

کهٔ ګُلرخ وته ستا لار نښته څیږه ده
خپل احوال کړه په نسیم دَ صبا عرض

زمونږ دَ "رنګ و بُو" دَ شاعر په شاعرۍ کښې دَ فطرت دَ ځینې نورو پهرو مظاهرو عکاسي هم موجود ده که کوم په اساس چې دَ دوئی کلام دَ رومانویت نمائنده او ترجمانی دے

راځي په هوا برق و بریښنا زغلی شتاب کا
وارَه که په ځانه نک وپوئې په سوځا دَ ستا
په ښادیه نه ما دَ وصل کوا کبو په وهلو کوتې دولبستې له د په

محبت نه وو بیو تندر آسمانی وو
چې ناګاه نا ماپه سر او په مال پرېوت
چې نا ښال شو د عشق تندر له آسمانه
ماحبیبا د غم لاټق ورته لاس وُنیو

د انګریزي ادب رومانوي شاعر "شیلې" د سپوږمۍ په نوم To the moon یو ښکلی ښایسته نظم لري او د هغه د دغه نظم دوه شعره په دې ډول دي:

Art Thou pale for weariness
of Climbing heaven, and gazing on the earth
Wandering Companionless
Among The stars That have a different birth.

ترجمه:- ته پورته آسمان ته په ختو یا د مختلف اشکال ستورو ترمنځ په یوازې ځای کې نابلدو ټپرخ بیولي لاندې ځمکې ته ګورې-"

د عبدالحمید بابا په کلام کښې د سپوږمۍ ذکر په دې ډول راغلی

په خیرات چې یار د حسن لاس پاس ونیو
نمر سپوږمۍ ورته کچکول پاس په لاس ونیو
چې ښکاره نا ما د ناره تابنده نمر شو
د سپوږمۍ د لاسه هلته مشال پرېوت

د انګرېزي ادب رومانوي شاعر کیټس کۀ هر څو حسن پرست شاعر یادېږي او د حسن Beauty په حقله یادګار نظمونه لري ولې د پښتو ادب رومانوي شاعر عبدالحمید بابا د حسن وښائست په بیان مزکه اسمان یو ځائې کوي. او دغه حسن د فطرت یا نېچر په رنګینو بیانولو خاص مهارت لري.

کۀ حجاب کړي راته لرې یار له مخه
نمر به ولم د فلک مکار له مخه
د مغرب له لوري نمر وخوت قیامت شو
کۀ راځي په کبر وناز دلبر د پاسه
د جنت حسن وجمال کۀ په کمال دی
شرمنده دی ستا له حسن له جماله
نور به نۀ تللم له تا سره کوم حسن
چې آسمان ته پورته لاړ د نمر طرف
تللې اوبۀ دب په بېرته ونوري ستاله شوقه
چېرې چې واقع شي شست وشوئ په جوئ د ستا
دا مې پر پوته ریښنه د ننداره له داغه
کۀ د لاس نه د نمر مخې مثال پرېوت
د مخ پېټې ښکلي حسن کښش ډېر که
ولې ناڅو وی د وریځې د آفتاب سخت

اخبر! وګه سرکوزے ژما ویار ته
که وګانا ته دی هر څو شمس و قمر خوښې

دَ عبدالحمید بابا دَ حُسن په بیان او تعریف ډیو غزل دا ابیات هم وګورئ چې په څومره ښکلی انداز دَ فطرت یا نیچر ښخه دَ تشبیهات Similes عکاسی او ترجمانی ده. او دَ کیټس دَ رومانوی شاعرۍ دَ رنګ او تخیل نه دَ عبدالحمید بابا دَ ذوق جمالیات تجلیات څومره زیات خونده ور او روښان دی۔

| | |
|---|---|
| که آفتاب دے که مهتاب | که لاله دے که ګلاب |
| نه دې دا مخے دَ مخ دے | نه ښخه دَ آب و تاب |
| چې دعوه یې په دروغ کړه | ستا دَ مینې په هر باب |
| ژبه وُ خته تر خته | دَ سوسن ستا په جواب |
| سرنګون دَ ستا له شرمه | نرګس تللے دے په خواب |
| په یوه پښه کاندې سروه | قصد دَ تلو ستا دَ رکاب |
| چې نسیم که ستا دَ حُسن | دَ چمن له لور ما ب |
| له خجلته بوئ دَ ګلو | حیئې پاسی په شتاب |
| ستا دَ تن په لطافت شی | دَ سمن صفا حجاب |
| سرو بانو دې یاقوت کړه | سره په وینو کښې غرقاب |
| نرګس کوزه کوریا له شرمه | ستا دَ سترګو په جواب |
| آب و تاب کړه ستا دَ غاښو | شرمنده دُرد دَ دریاب |
| ستا دَ مخ له شرمه وُلغیت | ښاپیر و مخ په حجاب |

ستا د حُسن وُ دریاب ته غیر حُسن دے حُباب
چې دي شما دم صفتو نه شمار دم ستوري په حساب
الغرض تر همه ښکلیو
ستا خوبي ده انتخاب

د عبدالحمید بابا کلام د فطرتي رنګونو، تصاویرو او پُرکشش مناظرو مجموعه ده. د هغه ښکلي اشعار د ذهن، نظاره خمار دے. د هوش و حواس نه پورته پُرجوش مستي او ولسته ده. د سوي نظره نظاره ده او د ښکلي تخیل مرقع ده

چې په مخ د ګلیدن ستر ګي پراستي وي
غنچه نه که سم کاته له دي دماغ
هر قدم چې بدم يې يار د چمن په خیابانونو
لور د لوره ښاخ د ګلو راته ځان ګواښي په سوک

توري ستر ګي سره لبان يې هسې زیب کا
لکه ګل په لاله زار کښي اهوا نښي
مشکین خال يې په سرو لبو هسې زیب که
لکه مست په میخانه کښي ملنګ کښيني

تر نور خط لاندې یې زنه هسې زیب که
لکه تولې شي مُچې په انګبین
دا یې خط نښوو نما کا نه دې له مخه
یا نوے نوے لوګي ځي له چراغه

پهٔ لمبه یې د رخسار وسوایږې شو
چې یې کښېښو په فراش د حُسن کام خط
دا په وچولي تور خال نهٔ ما د یار دے
که اذان لره ختلے دے بلال رضه

د دریاب کناره شوندې د دلبر وی — چې د پاندې شنه سبزه د تن کوهر وی
نصیب نهٔ یې کړه نکریزو په منګلو — لکه بېل له بوټي ښاخ شي د سرو ګلو

د انګریزي رومانوي ادب کښې یا ټون د حُزن و ملال Melancholy شاعر یاديږي خو زمونږ د پښتو ادب رومانوي شاعر عبدالحمید بابا د کلام کافي برخه حُزن و ملال او سوز و ګداز نه ډکه تعلق لري. دلته یې څو اشعار د مثال په توګه درکوو سه

ناخبره خلق یې ولې شفق بولي[۱] — دا نهٔ ما د زړهٔ زخمه د سمال پر پوت
لکه سرو د پسته په اورغاښتو سپین که — مالهٔ نن له ډېره غمه خندا راغله
سرهٔ لمبه شو لاله نهٔ ارنهٔ ماله آهه — د زړهٔ اوښو په نهٔ اوښو نهٔ اوښوے کېږي

---

۱ د شفق په حقله د شاه و ګدا دا دوه شعرونه سه

چې تمامې یې پیالې کړې د شفق
له مستۍ نه ستوري راغلل په حق حق
د مخ عکس یې په جام کښې د نبق دی
ګویا مِهر په سرخۍ کښې د شفق دی

خو نخوار خیال د یار رانخی تماشو له
که می ناره ورته د دینو فواره که
دا ناماله غمه شین ناره پکښی خیال د یار د شونډو
هسی رنګ نه یې ونه ینت که لکه مے په شنه پیاله کښی
د غمه سپینه د اباسینه چی لیده که کېږی
له دریا به می د او سکو نرے جوے لاړه
بې هوده یی صحبدم بو لی وکړے
د غم آه ناماله غمه ګرددون وکښی

د انګریزی او پښتو رومانوی شاعران د فطرت د مناظرو دلکشی او خوبصورتی خو یو شان محسوسه وی. ولی د دی مناظرو د رنګینی تصویرونو عکاسی او ترجمانی کښی فرق دے. یو د باغ په ګلونو د سحر با د نسیم الوتل وینی او بل یی د یار په لور قاصد ګنړی یو د نرګس ګل ښکلے اخلی او بل یی د خپل محبوب د ګل په شان ښکلی ګلونه ته نه کم ترېولی.
خو د زمانی او ماحول د فرق با وجود د دواړو په شاعری کښی سوز موجود دے. یو بلبل ته داسی مخاطب دے.

Thou wast not born for death, immortal Bird,
No hungry generations tread thee down,
The voice I hear this passing night was heard,
In ancient days by emperor and clown.

ترجمه:- اے لانړاوال مارغهٔ! نهٔ مرګ دُ پاره پیدا نه یې. او نهٔ پښو انو اوږدو تن و شملونو نهٔ ختم کړې. ماچې سحروختې ستا کوم آواز واؤرېده و نو هم دغه آواز پښواڼا ما نه بادشاهانو او درباری تو کارو هُم اورېدلے وو.

د پښتو ادب رومانوی شاعر "بلبل" داسې یاد وی. سه

لهٔ داغلی نړهٔ فریاد عبدالحمید که
کهٔ شړی له لاله زاره عندلیب څوک

وردز ورتهٔ د بودیه تال Rainbow په لیدو د خپلو خیالاتو اظهار په دې ډول کوی.

My heart leaps up when I behold
A Rainbow in The Sky

ترجمه:- ځهٔ چې آسمان کښې د بودیه تال وینم نو ما زړهٔ د خوشحالئ نه په تمو پوړو وتړیکو سرشی.

عبدالحمید بابا "قوس قزح" "بودیه تال" د خمار کمان یا لینده یې رنګین تصویر د خپل زړهٔ په شفاف صفا آئینه داسې راکاږی. سه

"ملتانئ قوس قزح لینده په لاس کښې
ورا سیکو ته د کلوخ په التاس کښې"

د عبدالحمید بابا د شاه ولګدا مثنوی د رومانوی منظوم افکارو کتابچه ده چې د دغه قیصې اکثر اشعار د فطرت عکسی تصاویر دی د کورهٔ

ی

هغه دَ شاه وګندا په قیصه کښې دَ فطرت ګلشن رعنائیت په خومره ښکلی انداز بیانوي

ب

یوه ورځ سیې ګذار په یوه باغ شُه

هسې باغ چې له جنته یې سراغ شُه

ترا رم پکښې ډیر ارام فراغ وو

هر یو ګل یې دَ ارم په سینه داغ وو

په خېره یې وُو پراته ګُل دَ سُنبل

دامنه منه حلقې حلقې هغه ګُل ګُل

هر ورق یې ښکلے خط دَ آزادئ وو

دَ بلبلو غږ یې نه پرے دَ ښادئ وو

هسې نه یې کوکلو نو په ګُلشن

لکه نه لقې دَ رخسار دَ ګُلبدن

سره لاله یې وُو له میو ډک منګی

رنګیدهٔ به پرې نرګس خراب ننګی

دَ خمار له غلبې شُه نې وسواس

نیم نارنج درلود نرګس ځکه په لاس

سروې خضر غوندې ځائې وو پکښې کړے

نارغون توغ یې په هوا وو پورته ورے

چې پرې نه پرے دَ ګلرخ باد صبا که

له هوسه یې غنچه قمیص قبا که

په دیدن یې د ګلرخ شونډې خندان شوې
د شبنم سپینې غوټې په کښې دندان شوې

..........................................

..........................................

نو سپوږمۍ په مثال خښتې یې د دروې
ساړې شوې په معنی له سیم و زروې

..........................................

..........................................

سروې قدچې به قدم په زمکه بر کړه
هر قدم به یې عالم زر پروڼه بر کړه

..........................................

چې به سپین په خندا غاښې د ګلعذار شه
د پرهېز به لاله زار به ژاله بار شه

د "شاه وګدا" د داستان دا خوا شعار هم ملاحظه کړئ

مځ د مزکې تمامې باغ و بوستان شه
کوه ودشت له ډېر وګلو ګلستان شه
نسترنڼا هونه شوله واوړ و عیانې نن ورځ
نور عالم شه سر له سرګوڼانې نن ورځ
د بهار ورېځې کوزې په کوهسار شوې
لور د لوره اوبه ساړې په جویبار شوې

چې له سره دې د غرهٔ سرنګون ټیلې
سیلاب څکه دې په وبنو ګلګون ټیلې
غوړه ولې ځائې په ځائې سبزه سباط دې
نهٔ لګېږي پښه په مزکه څهٔ نښاط دې

په جلوه چې باد ګلګون وګوناګون که
مخ د مزکې همګې بو قلمون که

د شبنم په ملغلرو وه سیلا له !
مرصّع سره پیاله شوه د لاله
له مستۍ اهوان واړه لاله خوری
په مثال لکه مستان مسته پیاله خوری

له خماره د لاله وپیاله ناڅکی
له مستۍ نه هسې ناغا بیتې شی نهٔ دانګی
کوره سرهٔ ګلونه سرهٔ جامونه د لاله وُ
مستې سترګې د شبر مستو غزاله وُ

د لاله وُ پیاله کاسه کړه د شرابو
د هوسه غوښې په ځائې خورُو کبابو

عبدالحمید بابا دَ شاه وګدا په قیصه کښې د فطرت د رنګ و
بُوانصر عنصر ،، سپرلی ،، ذکر په دې انداز کوی.

چې بهار محض د باره د نښاط — ځائې په ځائې د غوړه وو سبزه بساط
بروسې شونډې د غنچې کلِ خندان شوې — د شبنم سیلنې غوټې پکښې دندان شوې

سرې او شنې جامې تیارې د غنچې شوې
جلوه ګرې د چمن پخه پوخې شوې

چې نسیم کړه د خزان له بنده خلاصې
د نبا خونو په تالونو شوې رقاصې

ګل پرده بېرته له مخه د صبا کړه
طائفه یې د بلبلو په غوغا کړه

هسې رنګه شوه لاله له غوټه پیدا
لکه لعل شي له کاڼي هویدا

هسې پروت ګلِ نرګس دو په لاله کښې
لکه عینِ مخمورکسی په پیاله کښې

لاله بلې که هسې اور په هورو تور کښې
چې یې وُسه خپل کیکو رے په تنور کښې

مست په میټو شو د شوق هسې بلبل
چې یې سرې سترګې کا ته په مخ د ګل

حقیقت داد ے چې عبد الحمید بابا د پېښور د سیمې هغه خوش آوازه بلبل دے چې مئین په ګل دے او د فطرت د رنګ و بُو شاعرے په لاله زار وکښې ثاني نه لري۔

د باګرام د لاله زار بلبلان وا ړه
د حمید خوش ګویې کړله خاموشه

---

۱۔ شاه وګدا ۔ همیش خلیل ص۱۲۲

د عبدالحمید بابا اهمان دے چې هغۀ نه پس کورے کۀ د رنګ و بُو په موضوعاتو بل نوک شاعری وکړی او د کمل نظرت د رنګ په تعریف او وصفت د هغۀ شان بل بُلبل نوا شاعر پیدا شی د ښایست.

چې حمید غوندې بلبل یې سر په کور کړۀ
هغه ورځ به د با ګرام په کاو هائې وی

د پښتو ادب پوهان د عبدالحمید بابا نه وروستو د نازک خیالئ او موشګافئ په میدان کښې دویم لوئې اُستاذ کامګار خان خټک ګڼی او دوئ نه وروستو علی خان او کاظم خان شیدا حسابوی. مونږ د چیل دغه پوهانو د رنه او غوره رائې په ځائې ساتُو. ولې ترڅو مره چې د فطرت یا نیچر په رڼا کښې د شعر د بیان تعلق دے نو زما د ناقص خیال مطابق د کامګار خان خټک او علی خان په شاعرئ کښې د فطرت د رنګ و بُو او روما نویت څۀ خاص اثر نشته بلکه چې د عبدالحمید بابا او کاظم خان شیدا په کلام کښې روما نوی رنګ غالب دے. عبدالحمید بابا او کاظم خان شیدا د پښتو ادب د روما نوی افکارو دوه لوئې کلاسیکی شاعران دی او دوئ نه پس د نورو شاعرانو خصوصاً د شلمې صدئ د اخیری نیمائی برخې د روما نوی شاعرانو روما نوی رنګ او بیان راځی.

د عبدالحمید بابا د دیوان په کلام کښې روما نوی تخیّل او تصویری اشکال د کاظم خان شیدا په نسبت که څۀ هم کم ښکاری ځکه چې د کاظم خان شیدا د شاعرئ زیاته برخه د حسن و عشق بیان

خخه مربوط ده۔ او د عبدالحمید بابا کلام د حُسن وعِشق او پند و نصیحت دواړو برخو برابر مجموعه ده۔ خو مونږ که د شاه ولیدا او نېرنګ عشق مثنویانو د رومانوي کېفیاتو ذکر وکړو نو دغسي بیا د عبدالحمید بابا د شاعرۍ رومانوي کېفیت نه یات معلومیږي. البته د عبدالحمید بابا د شاعرۍ رومانوي اثر او کېفیت چې په کوم شدت محسوسیږي هغه د کاظم خان شیدا کلام د ګران پیچیده الفاظ او محاوراتو په سبب دغه خصوصیت نه لري نو ځکه مجبوریو چې عبدالحمید بابا د رومانویت سرخیل او کاظم خان شیدا یې پیروکار وګڼو۔

اوس راځو چې د دغه زماني د څو یاد مشهور موشګاف ،، شاعرانو کلام وڅېړو چې زمونږ د بیان او تحریر مزید وضاحت موافقت او تایید وشي۔

---

(۶)

# د عبدالحمید بابا د سبک پیروکار

## کامګار خان خټک

کامګار خان سنه ۱۶۷۰ء / ۱۰۸۰ھ تا سنه ۱۷۵۲ء / ۱۱۲۵ھ د نامدار خان نه وي د اشرف خان هجري لمسے او د خوشحال خان خټک کړوسے دے او د پښتو ادب بوهان

بې د عبدالحمید بابا نه پس دویم "موشګاف" شاعر بولی د کامګار خان خټک په کلام کښې که څه هم د فطرت نګارۍ رنګ نمایات غالب نهٔ دے ولې بیا هم د هغهٔ په ځینې اشعارو کښې د فطرت د رنګ و بوُ اثرات او تصویر موجود دے.

ه

په ګلونو کښې یې بوئ د وفا نشته
د دلبر نازګه شوے نهٔ وے په دا باغ

هم په کښې شرین شته هم سمن سُنبل
باغ د ګلونو د دلستان لرم

په موسم د نوبهار په ډېرو ګلو
درست چمن په سرو په سپینو تاراندوز شو

میاشتې ځان که د اَس نعل مېخونه ستوري
چې د نامه په اس شي سور شهسوار زما

چې جمال دې برهنه نشهٔ له نقابه
په ادب ورته ځم نو په زمین کښېنود

تل چې یې کړې لاندې ستا د حُسن په غنه
ځکه غنې تندر په تمر ولګیدهٔ

چې بلبل په وخت د ګلو ترانه که زهړ که د چنګ تارونه په آسمان غوڅ
ګلونه یې په سمع چا مې سیرې په بدن که
عجب اثر پیدا دے د بلبل په ترانه کښې

کامګار خیرې پېراهن که لکه صبح په تن باندې
دَ وحدت آفتاب طلوع که اوس هنګام دَ صبحدم دے

دَ کامګار خان خټک دَ فطرت دَ یوخاص عنصر "باد" په وساطت پیغام
او دَ عبدالحمید بابا دَ شاعرۍ موضوع او مضمون ته اشاره داسې ښائی
چې دَ شعر دَ سیاق وسباق مطابق هغه دَ عبدالحمید بابا دَ فطرت دَ رنګ
ولو دَ شاعرۍ ذکر کوی۔ ؎

چرې نه چې باد خبر عبدالحمید که
چې کامګار غزل داستا په مضمون ووې

---

## علی خان هشتنغر

دَ عبدالحمید بابا او کامګار خان خټک نه پس دریم موشګاف شاعر
علی خان یادیږی۔ چې روانه ساده صفا سوچه پښتو کښې دَ نازک او باریک
خیال دَ بیان ماهر دے۔ نو دَ هغهٔ په کلام کښې دَ رومانوی تخیل او
سوچ وفکر اشعار ډیر کم دی۔ دَ فطرت نګارۍ داخو شعرونه یې
دَ مثال په طور وګورئ۔ ؎

دَ نرګسو سترګې نیرې له خوارۍ شوې
غنچه دَ سوسن تک سپینې کړهٔ په وهل نارهٔ

صنوبر چې دې له قد سره سیالی که
څکه داسې په نری شمال نسکور دے

سروي چنار دواړه په هر لور هسکوي غاړه
داوانۍ چي قد د دلبر لويږي ووينم نه ؤ

خجالت ييي د قامت کړه سرو شمشاد شنډه
په برښنايي د خپل غابښ اوبه نه اله که

ستا سرله خياله کوږ وړي لکه سروي
که باريک اورمېږ ييي شته په درانه بار کې

دا د دلبر مخ دے چي له شاله زېرليدے شي
يا زېړوتے نمر دے چي ښکارېږي نيم له غره

که حجاب ييي له افتابه د مخ واخيست
نور صورت به مي قمر غوندي پاروښان که

د ګل رخ د اتشي شونډو طفيل دے
چي د سنور کړه عندليب سمندر مينه

## کاظم خان شيدا

د پښتو ادب د نازک خيال موشګاف شاعرانو په قطار کښي د
زماني په لحاظ که هر څو د کاظم خان شيدا (پيدائش ۱۱۳۵ھ-۱۷۲۲ع) شمار په
اخېرکښي راځي. ولي دا کښي هېڅ شک نشته چي د هغه په کلام کښي
د رومانويت رنګ زيات غالب دے. د کامګار خان ختک په شان
ييي نه په لواړه او د فارسي و عربي نه بوا الفاظ او اصطلاحات پکښي
زيات دي. نو په دا اساس د هغه دغه دومره ښکاري ښالسته رومانوي

کلام عمومیت بیانهٔ موندو. دَ هغهٔ دَ کلام ډیره لویه برخه عشقیات او رومانوی رنګ څخه مخصوص ده. دَ دهٔ برعکس دَ عبدالحمید بابا دَ دیوان کلام دَ رومانویت او اخلاقیات امتزاج دے. او ګڼ شمیر غزلونه یې درس او پند و نصیحت څخه هُم تعلق لری.

کاظم خان شیدا لکه چې ښکاره ده. دَ عبدالحمید بابا دَ موشګافئ او رومانویت دَ مکتب غړے دے. نو په دې وجه پخپل ځینې اشعارو کښې دَ عبدالحمید بابا او عبدالرحمان بابا دَ شاعرئ ثناخوان دے

په دا وخت کښې که شیدا دوا په مومند وے
ثنا خوان به وُو هردم ستا دَ ویلو
همیشه به یې بهار په باغ و راغ وے
که رنګینی شعر مې یو سی تر یاګرامه

دَ کاظم خان شیدا دَ باریک بینئ او رومانوی اثرات نه ډک څو شعرونه دَ مثال په توګه وګورئ:

دَ غنچې دَ رباط ور به وا کیږدُو دے — قافله دَ رنګ وبو دَرومی سبا شهٔ
په ګل بلې سرې لمبې کښې سبا یاد کړې
شنې دَ وزې یې ختې له پېره هغه
نمرهٔ دې وچوی تورهٔ شپه ستا دَ سنبلو
ښکلے مخ لکه سحر ګل نسرین کړه
دَ خزان له ترسه ګل ته ګټې نشم — په دا باغ کښې لکه بید همیشه لرزان یم

په خط ښان تاؤ کړي زلفې سنبلو
عجب نمائے که رخسار د ګلو

بې خبره يې نو بهار د حيا بو لي
ستا په لاس کښې تازه ګل له شرمه آب شه

ښين ډوم زړه لکه سپند وخپل سوختنه
چې په شاخ مې آرام نه وو بې مجمره

د آفتاب په کمند نه خېژم آسمان ته
نه بدم بار لکه شبنم په دوش د ګلو

د آفتاب د چشمې آب د شفق رنګ دے
چې تصوير نه يې د تا مصور حل که

تيغ په لاس لکه آفتاب په ميدان داغلو
سينه رنګين لکه شفق زبر و زبر هم

هغه مخ ستا په يقين رخشان آفتاب وو
چې حاضر يې وديدن ته شوې سحره!

د جلوه د قمر عکس که په آب کښې كه خوله دې ګرم نمر په مخ پيدا کره

چې ګرد يې د کوکب د کار وانه کړه
ولې نه وائي ناخن د هلال نښته

---

۱ جو کچھ بچ رہا تھا مرا خونِ دل
وہی آسمان پر شفق ہو گیا (جگر مراد آبادی)

ستا د مخ په شمع سوي ځا حساب کړل
وایه چرته پروانې په حساب سوزي

دواړه زلفې دې له خط سره آفت شوي
سیاه مار په نظر نه راځي ما نیام دے

له صورته یې عالم چشم پوشي کړه
چې ژمکې غونډې ولاړې په هر ډګر اوي

د سوسن ژبه حیرت کړه سرمه سایه
چې شیدا په دا بهار کښې سخن ګوئي شوه

د انګرېزي روماني ادب شاعرانو د فطرت د رنګ وبو په مختلف موضوعات کې هر څومره اوږده نظمونه لیکلي دي او نن د انګرېزي ادب فني پارې او شهپارې حساب کړی. ولې کاظم خان شیدا چې د لسو کم دوه سوه[190] اشعارو بهاریه قصیده کښې د سپرلي کوم کیفیت بیان کړے دے کوم د انګرېزي روماني ادب د فطرت په دې اهم موضوع د موشګاف روماني شاعر کاظم خان شیدا د غه قصیدې ته ورسي. د دغه قصیدې اولنے شعر په دے ډول دے

~

بیا عویل شو د حمل کوره اثار
شګفته په هر طرف تازه بهار

٧

# انګرېزۍ او پښتو رومانویت کښې فرق

د پښتو ادب رومانوي شاعرانو د پښتنې ماحول نه بهر که څه هم اثرات خيستي دي، نو هغه محض په ځينې موقعو د فارسي عربي ژبو د ځينې الفاظو او اصطلاحاتو تر حد محدود دي. خو انګرېزي رومانوي شاعرانو د يوناني توهماتو د يومالا Mythology او مافوق الفطرت Supernatural اندازه خپل کړې دې پښتنو شاعرانو چې څه وئيلي دي نو د خپل ماحول د ننه يې هر څه بيان کړي دي. هغه بيله خبره ده چې د يوناني توهماتو ديومالائي او مافوق الفطرت قيصې د فارسي ادب په وساطت پښتو ته را منتقل سوې او دلته د دغه را ترجمه شوؤ قيصو رواج يو زمانه عام وو چې زمونږ د عوام فکر و ذهن د پېريانو ديوانو د دهشت او خوف تحت يې ګڼلو او په وېره [illegible] او د مستقل او پر مخ تګ سوچ يې نه منونکي فکر

راایسار کړو.

(۲) دَ انګریزي ادب څیني رومانوي شاعران خپل عوام ته دَ فطرت په موضوعاتو داسې شاعري وړکوي چې هغه که یو خوا دَ هغوئ دَ کم ذهن دَ معیار نه ډیر پورته سوچ وي نو بل خوا هغه په داسې الفاظو کښې بیانوي چې هغه الفاظ دَ هغوئ امروزه ژوند سره هیڅ تعلق نهٔ لري. لکه ورډز ورتهٔ په لیریکل بیلیډز دیباچه کښې خو دا تلقین کوي چې شاعري دې په عام فهمه او اسانه ساده ژبه کښې وي. خو پخپله په دغه خپله وینا هیڅ عمل نهٔ کوي. بل اړخ دَ پښتو ادب رومانوي شاعر عبدالحمید بابا په اسانه صفا سوچه پښتو کښې دَ خپل خیالات او تخیلات اظهار کوي دغه وجه ده چې.

فارسي بانو دَ حیرت ګوتې په خُله کړې
چې حمید سخُن ساز ی کړه په پښتو کښې

(۳) یورپ کښې دَ رومانویت اصطلاح مستقل طور دَ لیریکل بیلیډز دَ اشاعت سنهٔ ۱۷۹۸ څخه ابتداء مومي چې دَ کلاسیکیت خلاف دَ یو تحریک نوم وو. خو پښتو کښې رومانویت دَ یو باقاعده سبک په حیث او ولسمه صدی کښې متعارف وو او دَ انګریزي دَ رومانوي دور نه ډیر اګاهو دَ عبدالحمید بابا شاعري ته

مروّج او د یو با قاعده سبک یا مکتبهٔ فکر په حیث پېژندل شو

(۴) د انګرېزي او پښتو د رومانوي شاعرانو د شاعرۍ ترمنځ د ماحول

علاقې، ژبې، بود و باش، رسم و رواج، مذهب او ثقافت

بوت فرق موجود دے. د انګرېزي رومانوي شاعرانو د فطرت

په خاص موضوعاتو لوئې او پر ده نظمونه لیکلي دي او د

خپل خیالات او تخیّلات په ښوريي په دغه یو موضوع کاني

رښا غوښتلي ده. خو د دې برعکس د پښتو ادب شاعران

د فطرت اشیاؤ او عناصرو ته د خپل محبوب تشبیهه

Simile ورکوي. چې د انګرېزي د رومانوي

شاعرانو په مقابل ګران او مشکل کار دے. انګرېزي رومانوي

ادب کښې تشبیهات Similes کم او استعارات

Metaphors ډېر زیات دي.

(۵) د انګرېزي رومانوي شاعران چې کوم مطلب او مقصد بیانول

اوږدو قیصصی انداز نظمونو کښې په تفصیل بیانوي او د

پښتو ادب شاعران دغه اوږد داستان په یو شعر کښې نیسۀ

په وضاحت ښائي. دغه وجه ده چې د عبدالحمید بابا د

حسیاتو Sensuousness شاعرۍ ته انګرېز

مستشرقین مېجر راورټي او ولیم بېلیو هم متاثر شول

او د ده کافي اشعار یې د یورپ عوام ته متعارف کړل.

(۶) دَ انګرېزۍ شاعرۍ رومانوي شاعران چې دَ فطرت په يو موضوع قلم پوره کړي نو دَ تخيّل په اس سواره دَ ناممکن په ځائې په هوا ناغلي. حقيقت شاته پرېږدي او دَ هغوي دغه قيصصي انداز داسې محسوسيږي لکه سړے چې خوب ويني خو چې داپاسي نو بيا هيڅ نه وي. دَ کالرج نظمونه دَ تخيّلاتو پيداوار دے او دَ خوبونو په دُنيا بناء دے ولې دَ پښتو ادب رومانوي شاعران دَ تخيّل په تاورخوږ پورته لاړشي خو حقيقت څخه خپل پښوسنون نه پرېږدي. او دَ خوب و خيال اسونه نه ناغلوي.

(۷) دَ انګرېزي ادب دَ رومانوي شاعرانو دَ شاعرۍ مرکزيت جذباتيت دے او دَ عقليت خلاف دے. ولې دَ دې برعکس دَ پښتو ادب دَ رومانوي شاعرانو دَ شاعرۍ روح په جذباتيت او عقليت دواړو بنا کړے. دوئ دَ تخيّل په زور او قوّت کښې هر څو مره پورته ځي او دَ فطرت يا بېکر څخه مشابهه نازک تشبيهات او استعارات استعمالوي نو دَ عقل و هوش لمن هم نه پرېږدي. مونږ که دا دوايو چې دَ انګرېزي ادب دَ رومانوي شاعرۍ په ضد دَ پښتو ادب دَ شاعرۍ په نرمون کښې جذباتيت او تخيّلاتي څوند سيله عنصرنيات دے نو بې ځايه به نه وي.

دَ انګرېزي ادب دَ شاعرانو دُ شاعرۍ محور معشوق ښځې ولاړې وي او دے يې لکه دَ يو مصوّر تصوير راکاږي. ولې دَ پښتو ادب دَ شاعر محبوب پس پرده او خيالي تصوير وي چې هغه يې په جذباتي تصوراتي رنګونو منوّر کوي. دغه وجه ده چې دَ پښتو په شعريت کښې دَ سوز و ګداز PATHOS عُنصر زيات دے۔ (۸)

دَ انګرېزه رومانوي ادب دُ کلاسيکي ادب خلاف يو بغاوت دے. ولې دَ پښتو کلاسيکي ادب په هر موضوع فلسفه، منطق، مذهب، قوميت، تصوّف، حسن و عشق او دَ فطرت په تخيّل بناء دے. رومانويت هم دَ پښتو کلاسيکي ادب يوه برخه ده او ځانله انفرادي حېثيت نه لوي، (۹)

دَ اُردو ادب نوموړے نقاد شاعر او اديب سيد عابد علي عابد دَ "رومانوي تحريک"، دَ سرخط لاندې ليکي:

"په حقيقت کښې دا و ښلے کيدے نشي چې کوم يو دور خالص کلاسيکي او کوم يو خالص رومانوي دور دے. هر کله چې يو شاعر ليکل کوي نو هغه دا سوچ نه کوي چې هغه به په رومانوي انداز کښې شعر وائي. که په کلاسيکي اسلوب کښې به شعر وائي"[له]

---

له اصولِ انتقادِ ادبيات ص۱۲۲

دَ ښاغلي سید عابد علي عابد دا وَینا دَ مشرقي ته بیو دَ روماټوټ

په حقله خو بالکل صحي او درست ده. خو دَ انګریزي ته ئې دَ رومانویت

څخه سمون نه خوري- انګریزي ادب کښې رومانویت دَ یو تحریک

په حیث هغه وخت میدان ته راشي چې خلق دَ کلاسیکي ادب دَ

خشکو او شاړو موضوعاتو نه تنګ شي. دَ رومانویت په شان دَ

انګریزي، کلاسیکي ادب هم دَ یو تحریک نوم دے. دې قسم تحریکات

پښتو ژبه کښې نشته. موږ ادب دَ کلاسیکل (پخواني) او جدید دراوسني)

په نوم پېژنو. شاعر دَ خپل دور او زماني دَ ماحول ترجمان او نمائنده

ګڼل وی او چې دغه وخت ئې غوښتي یا محسوسه وی هغه لیکي.

(۱۰) پښتو ادب کښې ما فوق الفطرت هم دَ فطرت یوه برخه

ده. ما فوق الفطرت کښې هغه ټول قیصې داستانونه

او نظمونه شامل دی چې دَ پیریانو، دیوانو، ښاپیرو

او داسې نور ما فوق الفطرت مخلوق څخه تعلق لري.

زموږ دَ کلاسیکي ادب یوه لویه برخه دَ دغه غیر حقیقي

یعنې دَ خوبونو او خیالونو په دُنیا پورې تړلې چې جدید

ادب یې نفي کوي. او دَ حقیقت پسندۍ په تول

تلل کوي.

دَ انګریزي رومانوي ادب کښې هر څو دَ فطرت او ما فوق

الفطرت نه کېرېا پېره چو رلي. خو دَ دغه رومانوي

ادب ته بُوده زموږ دَ ما فوق الفطرت دَ شاعري ته

نه جُدا قسم ده. زمونږ ما فوق الفطرت او دَ انګرېزي ادب دَ قرونِ وسطیٰ ما فوق الفطرت داستانونه یو بل سره ترډېره حده سمون خوري.

مونږ رومان یا روماني شاعري هغه کښو چې هغه دَ فطرت یا ما فوق الفطرت نه کېرچاپېره چورلي. اندازه يې قیصې وي. مینې محبت سره تعلق لري. دَ امروزه ښوندنه په او محاورات لري. دَ شاعرۍ نه علاوه انساني او ناول سره هم تعلق لري.

دَ دې برعکس رومانویت Romanticism که څه هم دغه خصوصیت لري ولې په انګرېزي ادب کښې دا دَ یو تحریک نوم دے. په دې وجه دَ رومانیت او رومانویت دَ الفاظو په استعمال کښې زبردست فرق موجود دے. خونن سبا رومان او رومانیت دواړه عام مروج اصطلاحات دي چې رومانویت ځنې بېلتون او فرق کول ګران او مشکل کار دے.

زمونږ دَ شلمې صدۍ دور کښې دَ پښتو ادب کښې شمېر شاعرانو دَ فطرت دَ عناصرو او اجزاوُ دَ مظاهرو په موضوعاتو دَ انګرېزي ادب دَ رومانوي شاعرۍ دَ اثر لاندې کافي نظمونه لیکلي دي. په دوئ کښې دَ عبدالغني خان، اشرف مفتون، امیر حمزه شنواري، اجمل خټک، قلندر مومند (۱۱)

شاړغره، چینه، دریا، ختیځ، ماښام، لښتي وغیره نظمونه.

عبدالرحیم مجذوب، یونس خیبل، هاشم بابر وغیره نومونه د یادونې خاص وړ دي.

عبدالرزاق حکمت د ګل په نوم د شعرونو مجموعه چاپ کړېده. د انګرېزي ادب رومانوي شاعر ورډزورته خپل کمسن محبوبه "لوسي" او یا کیټس خپل معشوقه "فیني براؤن" ته مخاطب دے. نو عبدالرزاق حکمت د خپل فرضي محبوب "ګل" نوم د شاعرۍ نه لاندې نهٔ غورځاوه وي.

(۱۲) د اسلوب Diction او طرز تحریر Style

ترمینځ هم د دواړو ژبو د رومانوي شاعرانو ترمینځ زبردست فرق محسوسېږي. دې کښې شک نشته چې د انګرېزي ادب د رومانوي شاعرانو ځینې نظمونه د اسانې ساده انګرېزۍ ژبې شائسته نمونې دي. او سکائی لارک Sky Lark شان نظمونو کښې د غنائیت او ښکلې شائسته سندرې ټول خصوصیات موجود دي. خو د پښتو ادب رومانوي شاعرانو تر ډېره حده ذکر کړي مشکل خیال او ګرانو سختو الفاظو د استعمال نه خپل ځان په وس ساتلے دے. د غنائیت او اسلوب په ټول د پښتو ادب د رومانوي شاعرانو شاعري ښهٔ پوره او نموره ده.

(۱۳) د انګرېزۍ ادب د رومانوي شاعرانو شاعرۍ د نظم

مختلفو اصنافو سره تعلق لري لکه Lyric, Ode
Sonnet وغیره. خو د دې برعکس د پښتو ادب د
شاعرانو شاعري زیاتره د غزل په صنف کښې موندن شوې
چې د شعري ادب یو گران او مشکل صنف دے.

د انگرېزي رومانوي شاعرۍ که هر څو بحر، وزن، سیلاب او نه
او زمونږ د مثنوی انداز نه قافیه لري. خو لکه د پښتو ادب د شعري
اوزان او قافیه خصوصاً ردیف پابند نه وي دغه وجه ده چې د انگرېزي
ژبې د شاعرانو تخیّل او تفکر د قافیه ردیف نهایت تابع نه دے. ولې د پښتو
ژبې د شاعرانو سوچ او خیال د قافیه ردیف ډېر نهایت تابع او پابند دے
او ځینې وخت د قافیه ردیف تبدیلي او ضرورت یو ښه خیال او سوچ
کلا ود او ضائع کړي.

د سُر Rhyme انداز د دواړو ژبو مختلف دے
د انگرېزي د رومانوي شاعرۍ طرزِ تحریر قیصصي Ballad
دے. Sonnet چې عموماً څوارلس مصرعې او لنډ سیلاب معه
لري. متمّن[1] Octave او مسدّس Sixtet بند ونه لري. او لنډ بند پس منظر
او دویم مقصد بیانوي. غزل Ode هم مختلف اشکال لري په کوم
کښې چې د شاعر د اندروني احساساتو اظهار وي.

قافیه عموماً د دوه حرفِ علّت Vowels نه جوړ مرکب آواز
Diphthong لکه د seat, heat "ea" د house "ou"

---

[1] د اتّه مصرعو یا څلور شعرو ټوټه بند.

د mouse "oi" د oil - Coil هم قافیه آوازاو د غښې Diphthong څخه د نورو حروف علت اضافه یا نور هم آوازه الفاظ وي.

ذدې برعکس د پښتو ادب د رومانوي شاعرانو غزلیات خپل انداز لري چې هر شعر یې یوه مکمله اکائي وي او خپل انفرادي مطلب او وضاحت لري. او دریاب په کوزه کښې بند ډول مثال لري.



# کتابونه


1. The Golden Treasury by Palgrave
2. Notes on selected poems of Palgrave's Golden Treasury by experienced Professors of English (1985)
3. Bridges of Songs by C. H. Barry (1953)
4. History of English Literature by Legouis and Cazamian

دَ عبدالحمید دیوان ــــــــــ صدیق الله رښتین

دَ عبدالحمید مومند دیوان ــــــ پښتو ټولنه افغانستان

دُرو مرجان ــــــــــ سید انوار الحق کاکاخیل

دَ عبدالحمید مومند یاد ــــــ دَ افغانستان دَ علوموا کادمي

نیرنګِ عِشق (پښتو) ــــــ پښتو ټولنه کابل

نیرنګِ عِشق (فارسی) ــــــ پنجابي ادبي اکیډمي

شاه و ګدا ــــــــــ همېش خلیل

دَ مرزا خان انصاري دیوان ــــ همېش خلیل

دَ دولت لواڼي دیوان ــــــ پښتو ټولنه کابل

دَ واصل روښاني دیوان ــــــ پښتو ټولنه کابل

خوشحال خان خټک او دَ ده ادبي مکتب ــــ دکتور عارف عثمانوف

دَ رحمان بابا دیوان ــ پښتو اکیډمي پېښور

